# هیواد
ورځپاڼه


# د اسلامي امارت د مشرتابه د حکم پر اساس نوې ټاکنې شوې

د اسلامي امارت ویاند مولوي ذبیح الله مجاهد ویلي: د اسلامي امارت د مشرتابه د حکم له مخې حکومت کې نوې لوړ رتبه ټاکنې شوې دي .

ذبیح الله مجاهد پر ایکس پاڼه لیکلي: د دغو ټاکنو پر اساس د لوړو زده کړو وزارت علمي معین دوکتور لطف الله خیرخواه د افغانستان بانک د نظارت د آمر په توګه ټاکل شوی دی. دغه راز د کانونو او پټرولیم وزارت د پلان او پالیسي مخکینی معین شیخ ضیاء الرحمن اریوبي د لوړو زده کړو وزارت د علمي معین په توګه، د تخار مخکېني والي مولوي عبیدالله امین زاده د کار او ټولنیزو چارو وزارت د ټولنیزو چارو د معین په توګه او د کندهار مخکېنی امنیه قوماندان مولوي سمیع الله حزب الله د تخار د والي په توګه ټاکل شوي دي.

د دې ترڅنګ د افغانستان بانک د نظارت مخکېني آمر شیخ عبدالرحمن قانت د کانونو او پټرولیم وزارت د پلان او پالیسۍ د معین په توګه او د هلمند پخوانی والي مولوي عبدالاحد طالب د کندهار ولایت د امنیه قومندان په توګه ټاکل شوي دي.


مؤسس: عبدالرووف بېنوا

د تاسیس کال ۱۳۲۸ لمریز

پنجشنبه د شعبان المعظم ۱٤ مه ۱٤٤٦ق کال، سلواغې ۲۵ مه ۱٤۰۳ ل کال، د فبرورې ۱۳ مه ۲۰۲۵ م کال، خصوصي ګڼه ۵٤۳ مه، پرله پسې ګڼه ٦۳۳ مه، اتمه دوره


## د بهرنیو چارو وزارت: ځینې هېوادونه د اسلامي امارت او نړۍ ترمنځ د بې باورۍ رامنځته کولو هڅې کوي



د افغانستان د بهرنیو چارو وزارت د ملګرو ملتونو د امنیت شورا په غونډه کې د پاکستان د استازي څرګندونو ته په غبرګون کې ویلي: یو شمېر هېوادونه هڅه کوي، چې د اسلامي امارت او نړیوالې ټولنې ترمنځ د بې باورۍ فضا رامنځته کړي. د بهرنیو چارو وزارت خبرپاڼه کې د پاکستاني استازي هغه ادعاوې هم بې بنسټه بلل شوي ،چې ګنې له افغان خاورې د سیمې هېوادونه له احتمالي ګواښ سره مخ دي.خبرپاڼه کې ویل شوي، افغانستان کې د اسلامي امارت له بیا واکمنېدو وروسته نورو هېوادونو ته هیڅ ډول ګواښ نشته او افغانستان کې د ځینو امنیتي پېښو عاملین د ډیورنډ له بلې غاړې راغلي دي.

دبهرنیو چارو وزارت ټینګار کړی، یو شمېر هېوادونه د سیاستونو، امنیت او اقتصادي ودې د اصلاح لپاره د هڅو پر ځای د افغانستان د بې ثباته ښودلو په لټه کې دي.یاد وزارت زیاته کړې: له څو لسیزو وروسته افغانستان کې سوله او امنیت ټینګ شوی او له ناکامو هڅو سره سره بیا هم هیڅوک نه شي کولی د افغانستان د اقتصادي ودې مخه ونیسي.

## مولوي عبدالسلام حنفي: د خیرخواه سوداګریز مارکېټ پرانیستل په هیواد کې د پانګونې د ودې لپاره مهم ګام دی

د ریاست الوزراء اداري مرستیال مولوي عبدالسلام حنفي پرون ماسپښین د نوي خیرخواه سوداګریز مارکېټ د پرانیستو مراسمو کې ګډون او وینا وکړه. په دغو مراسمو کې چې د اسلامي امارت د کابینې غړو او مشرانو هم حضور درلود، د ریاست الوزراء اداري مرستیال لومړي د نوي خیرخواه سوداګریز



مارکېټ د کار په بشپړېدو خوښي وښوده او د دې سوداګریز مرکز ګټې اخیستنې ته ... ۳مخ

## بهر ته د افغانستان د مېوو او سبزیجاتو په صادراتو کې زیاتوالی راغلی

د افغانستان د کرنې او مالدارۍ خونه وايي، چې په تېرو ۹ میاشتو کې سلګونه زره ټنه مېوه او سبزیجات له افغانستان څخه منځنۍ اسیا او عربي هېوادونو ته صادر شوي دي.په دې صادراتو کې پیاز، کچالو، تازه میوې او نور سبزیجات شامل دي، چې ارزښت یې میلیونونو ډالرو ته رسېږي.د یادې خونې مرستیال مېرویس حاجي‌زاده وايي، چې که څه هم پاکستان د افغانستان د مېوو او سبزیو د حاصلاتو په موسم کې خنډونه رامنځته کړي وو، خو بیا هم توانېدلي یو چې منځنۍ اسیا، هند او عربي هېوادونو ته مېوې او سبزیجات صادر کړو.د سبزیو او مېوو یو شمېر پلورونکي بیا د کرنیزو محصولاتو ... ۳مخ



## د قیصار - لامان حلقوي سړک د پنځمې برخې د رغولو تړون لاسلیک شو

د ټولګټو وزارت تخنیکي معین مولوي عبدالکریم فاتح، پرون د «نورزي کانفیډنس» سړک جوړونې او ودانیز شرکت له مسئول سره د قیصار - لامان حلقوي سړک د پنځمې برخې چې ۶۱ کیلومتره اوږدوالي لري؛ د ۲۵ کیلومتره سړک د رغولو تړون لاسلیک کړ.د ټولګټو وزارت ویاند محمد اشرف حق‌شناس، په همدې مناسبت جوړه شوې خبري غونډه کې، د افغانستان د حلقوي سړک پر ارزښت خبرې وکړې او ویې ویل ،چې د قیصار - لامان حلقوي سړک ۲۳۳ کیلومتره اوږدوالي لري او په پنځو برخو وېشل شوی دی.ده زیاته کړه ،چې د قیصار - لامان حلقوي سړک د پنځمې برخې چې ۶۱ کیلومتره اوږدوالي لري؛ د ۲۵ کیلومتره سړک د رغولو تړون لاسلیک شو چې د دې تړون ارزښت یو میلیارد او ۴۵۵ میلیونه افغانۍ دي او د پروان ولایت د کرومایتو کان په بدل کې به تطبیق شي ... ۳مخ



## میدان‌وردګو کې ۷ ښوونځي ورغول شول

د میدان‌وردګو د پوهنې ریاست مسئولین وايي چې د ماشومانو لپاره د ملګروملتونو د ملاتړې اداري(UNICEF) له لوري د دغه ولایت په ۷ ولسوالیو کې ۷ ښوونځي له بیارغونې وروسته پرانیستل شول.د دغه ولایت د پوهنې ریاست له لوري رسنیو ته په استول شوې خبرپاڼه کې راغلي چې دغه ښوونځي سږکال د یاد ولایت په مرکز میدان‌ښار او لرې پرتو ولسوالیو کې بیارغول شوي دي.د ورکړل شویو معلوماتو له مخې، د یادو ښوونځیو په بیارغونه کې د ښوونځیو احاطوي... ۳مخ

## پکتیا کې ۲۷۰ پراختیایي پروژې بشپړې شوې

د پکتیا په مرکز ګردېز کې د ۱۶ دولتي ریاستونو مسئولینو د روان ۱۴۰۳ کال لاسته راوړنې د یو خبري کنفرانس په ترڅ کې رسنیزې کړې.د جوړې شوې غونډې په ترڅ کې د پکتیا مرستیال والي شیخ انعام الله صلاح الدین وویل، چې په روان کال کې د اسلامي امارت له لوري د ۵۷۶ میلیونه ۲۵۰ زره افغانیو او د همکارو موسسو له لوري د ۳۳ میلیونه ۲۲ زره ډالرو په لګښت ۲۷۰ پرمختیایي، بشري او رغنیزې پروژې پلي شوې، چې په ټولیز ډول شاوخوا ۲ میلیارده ۸۸۷ میلیونه ۷۹۰ زره افغانۍ کېږي.په ورته وخت کې د ګردېز ښاروال حبیب الرحمن منصور وویل ،چې د ښاروالۍ اداري په روان کال کې د ۱۵۰ میلیونه افغانیو او د مؤسسو له خوا د ۵۰ زره ډالرو په لګښت ۷۵ رغنیزې پروژې عملي کړې ... ۳مخ



## لوګر کې ۱۳ سوداګریز مارکېټونه جوړېږي

د لوګر محلي چارواکي وايي چې د کور او ښار جوړولو وزارت له لوري د دغه ولایت په مرکز پل‌علم او ولسوالیو کې ۱۳ معیاري سوداګریز بازارونه جوړېږي.د دې ولایت د کور او ښار جوړولو ریاست رئیس مولوي مطیع‌الله زاهد پل‌علم کې جوړې شوې غونډې ته وویل، د مرکز پل‌علم په ګډون په بره‌کي‌برک او خرخ ولسوالیو کې ۱۳ معیاري سوداګریز مارکېټونه جوړېږي.نوموړي وویل، دا بازارونه د سوداګرۍ او اقتصادي پراختیا لپاره په اساسي توګه جوړېږي چې عملي چارې به یې ډېر ژر پیل شي.بله خوا د لوګر د والي ویاند صدیق‌احمد صدیقي رسنیو ته ویلي، د یادو بازارونو د جوړېدو لپاره له لسو ادارو څخه یوه کمېټه جوړه شوې او پر پلان یې کار روان دي چې له جوړېدو وروسته به یې عملي چارې ... ۳مخ



## د بامیانو د سربو او جستو کان تړون له یو کورني شرکت سره لاسلیک شو

د کانونو او پټرولیم سرپرست وزیر د بامیانو ولایت د یکاولنګ ولسوالۍ د اسپ میدان سیمې د سربو او جستو کان تړون له یوه کورني شرکت سره چې د کانونو د را ایستنې، پروسس او سوداګریز شرکت دي، د څه باندې ۸۳ میلیونو افغانیو په ارزښت لاسلیک کړ. سرپرست وزیر له دغه شرکته غوښتي، چې د کان کېندنې د ټولو اصولو پر بنسټ کار وکړي.

## ۴ولایتونو کې ۱۶۵۷۸جریبه غصب شوې ځمکه راګرځول شوه

د اسلامي امارت د عدلیې وزارت وايي، چې له تېرې میاشتې راهیسې په کندز، غور، نیمروز او ارزګان ولایتونو کې ۱۶ زره ۵۷۸ جریبه دولتي ځمکه بېرته راګرځول شوې ده. یاد وزارت پرون په خبرپاڼه کې ویلي ،چې په تېره میاشت کې له ټولو زیاته غصب شوې ځمکه په غور ولایت کې بیرته راګرځول شوې چې ۸ زره ۹۴۰ جریبه ښودل شوې ده. د اسلامي امارت د عدلیې وزارت دا هم ویلي ،چې په دې موده کې ... ۳مخ



## پر افغانستان د روسانو یرغل یو شرم او تېښته یې بل شرم و



۲مخ

## آزادي نعمت او ساتل یې مسئولیت




۲مخ

## افغانانو نړۍ د شوروي له ښکېلاکه وژغورله



۲مخ




# آزادي نعمت او ساتل يې مسئوليت

دا څلورم کال دی، چې افغان ملت له شوروي اتحاد څخه اخيستل شوې آزادي داسې مهال لمانځي، چې هيواد مو د امپرياليستي اشغالگرو له منگولو آزاد شوی او ملت مو د الله تعالی په مرسته او د بې سارو قربانيو په بدل کې د آزادۍ اوهوساينې سا اخيستې.

که څه هم د اشغالگرو پر وړاندې د مبارزې او مقاومت په محاذ کې مو گڼ شمېر هېوادوال شهيدان، ټپيان او تري تم شول، ښارونه او کلي مو ويجاړ شول او د ترقۍ او پرمختگ له کاروانه کلونه-کلونه وروسته پاتې شوو؛ خو معنوي ارزښتونه مو وساتل، آزادي مو واخيسته او اوس الحمدلله د يو بشپړ خپلواک او اسلامي نظام څښتنان يو.

د ۱۳۵۸لمريز کال د جدي مياشتې په شپږمه نېټه د هغه وخت شوروي اتحاد پر افغانستان يرغل وکړ، هغه مهال شوروي اتحاد د نړۍ په کچه ستر ځواک گڼل کېده او د هېوادونو د استعمار او استثمار فکر کرارکېناستلو ته نه پرېښوده. شوروي ځواکونو د خپل څه د پاسه ۹ کلن اشغال پر مهال له هېڅ راز وحشت څخه دريغ ونه کړ، د مېرمنو او کوچنيانو په گډون يې سلگونه زره بې گناه افغانان شهيدان، زرگونه نور يې تري تم او ميليونونه يې هجرت کولو ته اړ کړل، د هېواد زېربنا، ښارونه او کلي يې هم ويجاړ کړل.

خو افغان ملت يې پر وړاندې تسليم نشو، بلکې د هېواد د آزادۍ او خپلواکۍ د بېرته اعاده کولو لپاره يې د تن په وينو سخته مبارزه وکړه او نږدې يونيم ميليون هېوادوال موشهيدان شول. د همدغو بې سارو قربانيو برکت او د متعال خدای نصرت و، چې د ۱۳٦۷لمريز کال د دلوې مياشتې په ۲٦مه نېټه د سرو لښکرو وروستی عسکر هم د افغانستان له سپېڅلې خاورې ووت.

اوس افغان ملت له شوروي اتحاد څخه د خپلواکۍ اخيستلو۳٦ مه کليزه په داسې حال کې لمانځي، چې امريکا او ناټو ته د ماتې ورکولو ستر وياړ هم لري، په ټول هيواد کې سرتاسري امنيت تامين دی، د ظلم او وحشت مخه نيول شوې، پر ټول هېواد يو مرکزي اسلامي نظام حاکم دی او د بيا رغونې او پرمختگ کاروونه په چټکۍ سره روان دي.

د آزادۍ او خپلواکۍ له سروکي سره د قربانۍ او کړاو توري هرو مرو ذهن ته راځي. اوس چې افغانستان يو خپلواک او امن هېواد دی، دا د ميليونونو مخلصو افغانانو د قربانيو پايله او نتيجه ده او آزادي موږ ته په ډېر لوړ قيمت تمامه شوې ده؛ اوس زموږ د ټول افغان ملت او حکومت مسئوليت او دنده ده، چې دغه خدای راکړې آزادي وساتو، د حکومت مسئوليت دا دی، چې د ظلم او فساد مخنيوی وکړي، د چارو واگې د اهليت له مخې وړ کسانو ته وسپاري، د ملت ټول مشروع حقونه ورکړي، په ځانگړې توگه د هوسا ژوند او د علم او پوهې ترلاسه کولو حق. دين، هېواد او خپلواکۍ سره د مينې او تلپاتې اړيکې لپاره...

۷مخ

# د افغانستان خلکو هېڅکله د پرديو تېرى او اشغال نه دى زغملى





نقيب الله ((احمدي))

تاريخ پوهانو چې افغانستان د امپراتوريو هديره بللې او په عملي ډول د نړۍ سُپر طاقتونه پکې مات شوي. د وخت هر يرغلگر ته يې د سر په کاسه کې اوبه ورکړې دي، په نړۍ کې چې چا د خدايۍ او فرعونيت دعوه کړې ده، نو دا سرکشه او باغي غرور يې افغانانو ور مات کړی او د خدای جل جلاله وحدانيت يې ثابت کړی دی.

له لوی سکندر نه نيولې بيا تر گرگين، چنگېز، انگرېز، شوروي او امريکا پورې چې هر يوه يې په خپل وخت کې ځانونه د نړۍ واکداران بلل، هېچا يې پر وړاندې د احتجاج غږ نه شوای پورته کولای، خو دا مغرورې ککرې او باغي سرونه د افغانستان په سردرو کې مات شول. دلته فلسفې او مفکورې دړې وړې شوې، باتورو افغانانو د مغوليزم، سيکولرېزم، کمونېزم، سوسيالېزم، لينينزم او مارکسيزم مفکورې د نړيوالو له اذهانو نسيا منسيا کړې. آن تر دې، چې غربي ديموکراسي، کپيټالېزم او امپرياليزم يې په غبږ کې په گونډو دي او اسلامي او افغاني غرور ته يې سلامي کوي.

دا چې افغانان الله جل جلاله د نړۍ د سرکشو قومونو د سمولو او ټکولو لپاره پيدا کړي دي، د دوی ديو غليم له برخليک نه مو خبروو، چې څنگه يې پر افغانستان تېری وکړ او بيا افغانانو څنگه د هغوی ايډيالوژي د ځمکې له کرې نه ورکه کړه او د ابد لپاره يې خاکسار کړ.

د جدي په شپږمه ولې روسانو پر افغانستان يرغل وکړ؛ څومره ظلمونه، وحشتونه يې وکړل، مظلومو او کړېدلو افغانانو بيا څنگه درس ورکړ، روسان د نړۍ په تاريخ کې له څنگه ماتې سره مخ شول او د روسانو په مقابل کې د افغانانو تاريخ جوړوونکې حماسې او مشهورې جگړې کومې دي؟ په دې بحث کې به له دې مطالبو خبر شئ.

پر افغانستان د شوروي د يرغل عوامل:

روسانو په نولسمه او شلمه پېړۍ کې ځان ته د نړۍ يو ابر قدرت وايه، د ډېرو سيمو د نيولو شوق او مينه ورسره وه، چې په نتيجه کې يې تاتارستان، منځنۍ آسيا، منگوليا او شرقي اروپا ونيوله،د هند گرمو اوبو ته يې ځان رسول او پر هغه تسلط د دې استعماري هېواد پخوانۍ آرزو وه.

په روسيه کې د ځينو سياسي تحولاتو له امله د روسيې حکومت په (( د شوروي اتحاد سوسياليستي جمهوريتونه)) بدل شو، له دې وروسته يې ډېره ظالمانه، غاصبانه او ديکتاتورانه پاليسي خپله کړه، د نړۍ کوچني او فقير هيوادونه، چې د مارکسېزم د مفکورې مخالف وو، روسيې غوښتل دا هيوادونه د خپلې مفکورې او ايډيالوژي منلو ته تيار کړي او د سلطې کړۍ يې پراخه شي.

يو له دې هيوادونو ، چې د روس د تېري ښکار شو افغانستان و، چې د دوی په لاس د روزل شويو کسانو لکه، ترکی، امين، کارمل او نجيب په واسطه يې وکړای شول، چې په افعانستان کې د سياسي او اجتماعي نفاق تخم وشيندي او په ۱۳۵۷لمريز کال د ثور د اوومې د تورې کودتا په پايله کې زمينه برابره کړي، تر څو روسيه د افغانستان په داخلي امورو کې فعاله ونډه واخلي.مسکو ته يې د خدمت کولو لپاره دا زمينه برابره کړه، ترڅو افغانستان د روسيې په نظامي هډه بدل شي او د هند تر بحره د دوی سياسي او اقتصادي نفوذ حاکم شي.

د روسانو د يرغل عوامل زيات دي، خو په لنډو ټکو کې اشاره ورته کوو:

۱-د کمونيستي رژيم په مقابل کې د مجاهدينو قوت:

د افغانستان په بېلابېلو سيمو کې مسلحانه پاڅونونو لکه د هرات، د کونړ د اسمار، پکتيا، لوگر، پنجشېر، لغمان،نورستان او بادغېس د روسيې اندېښنه زياته کړه، د کرملين واکدارانو فکر وکړ، چې د مسلحو قواوو دلېږلو په نتيجه کې به دکابل کمونيستي رژيم بقا ومومي او د افغانستان د خلکو مقاومت به له منځه يوسي.

۲-د کمونيست گوند په منځ کې ژور اختلافات:

دا اختلافات له پخوا موجود و، چې د ثور د اوومې له کودتا سره نور هم پراخ شول. د امين او کارمل تر منځ اختلافات دې حد ته ورسېدل، چې حل کول يې مشکل وو. هر يوه به ځان مسکو ته له بله ډېر وفادار معرفي کاوه، خو روسانو ته د خپلو گوډاگيانو اختلاف مهم نه و. هغوی غوښتل د خپل وفادار غلام په واسطه ځان د افغانستان او سيمې اقتصادي گټو ته ورسوي. ۳-غرب او د روسيې دښمنانو ته د امين نږدېوالی:

دا پر افغانستان د روسيې د يرغل له عمده عواملو څخه دی. حفيظ الله امين د سقوط په حال کې و، د ده له رژيم سره ورځ په ورځ کرکه زياتېده، له مجاهدينو سره د خلکو رابطه ټينگېده .خانانو او ځمکه والو د هغوی د بريا لپاره زمينه برابروله. کمونيستي رژيم ته د يو مرتد او غير اسلامي رژيم په سترگه کتل کېدل، د کابل فضا داسې شوه، چې امين مجبور شو د روس پر ځای غرب ته د سوال ځولۍ وغوړوي، ده د امريکا او پا کستان د سفارت له غړو سره ملاقاتونه زيات کړل، نو د روسيې شکونه پر حقيقت بدل شول، هغوی پوهېدل که امين غرب ته پناه يوسي او کابل د مجاهدينو لاس ته ولوېږي ،نو د روسيې گټې به په خطر کې ولوېږي.

۴-د شوروي اتحاد د مرزونو امنيت ته گواښ:

روسانو فکر وکړ که امين له مجاهدينو سره يو ځای شي يا تنها مجاهدين د کابل رژيم سقوط کړي، په دواړو حالتونو کې په افغانستان کې يوه اسلامي اداره را منځ ته کېږي، چې امکان لري تاثيرات يې له مرز نه د باندې هم سيوری وکړي او د منځنۍ آسيا جمهوريتونه هم تر شعاع لاندې راولي.

۵-د هند گرمو اوبو ته ځان رسول:

د پتر کبير له وخته د روسيې دا آرزو وه چې کوچني هيوادونه خپلې مستعمرې وگرځوي او د شوراگانو د هيواد غړي يې اعلان کړي. افغانستان چې د هند بحر ته د رسېدو په لاره کې يو محکم دېوال و ،غوښتل يې ضعيف او کمزوری يې کړي ، چې د نولسمې پېړۍ په اواخرو کې يې د منځنۍ آسيا جمهوريتونه اشغال کړل او د افغانستان مهم ښارونه لکه لوی پامير، قوقند، مرو، تبرېز او پنجده يې له افغانستانه جدا کړل غوښتل يې هرات او بادغيس هم جدا کړي.

٦- روسيې ته د داودخان وروستی سفر او له برېژنف سره يې ټکر:

داودخان د ۱۹۷۷م کال په اپريل کې د شوروي په بلنه روسيې ته سفر وکړ، هلته په غونډه کې برېژنف په عصبي لهجه داودخان ته وويل: د افغانستان په شمال کې د امپرياليزم جاسوسان گرځي .پخوا دغسې مسائلو ته پاملرنه کېده .اوس ورته چندان توجه نه کېږي. د دې خبرې په اورېدو داود خان سخت عصبي شو او ويې ويل، چې افغانستان بايد خپله آزادي له لاسه ورکړي، دا د افغانستان انحصاري حق دی ،چې په خپله خاوره کې څوک پرېږدي او څوک نه

٦مخ

# پر افغانستان د روسانو يرغل يو شرم او تېښته يې بل شرم و

حيات الله حليم

پر کمزورو هېوادونو د زورورو او زړورو هېوادونو تيري يوعام تاريخي معمول دی، خو کله، کله داسې هم پېښېږي چې تېري کوونکي قوي قدرتونه د کمزورو هېوادونو له لاسه داسې پر گونډو شي چې د تېښتې لاره پرې ورکه او داسې بد نامي ورپه برخه شي ، چې پيغورېې تاريخونوته پاتې شي ، يوه له دغو زورورو تيري کوونکو څخه د پخوانۍ شوروي اتحاد امپراتوري وه چې د ۱۳۵۸ کال د جدې په ٦مه يې دخپلوشومو موخو د په لاس را وړلولپاره په ډېرعجولانه ډول د ټولونړيوالوموازينوخلاف پر افغانستان حمله وکړه چې په ترڅ کې يې داسې تاريخي شرمندگي ورپه برخه شوه چې د روسانو امپراتوري يې دړې وړې کړه .

د ۱۳۵۸ کال د جدي په څلورمه اوپنځمه د بگرام اوکابل (خواجه رواش) هوايي ډگرونوته د افغان حکومت له اجازې پرته د داسې غول پيکرو روسي الوتکو شاهدان وو چې تلې او راتلې خوڅوک نه پوهېدل چې چل څه دی ؟ افغان منصبدارانو به چې له روسي سلاکارانوڅخه د موضوع په اړه پوښتنه وکړه هغوی به يوازې شونډې بوڅې کړې ، دومره به يې وويل: ښايي پاکستان پرافغانستان حمله وکړي ! موږ بايد د دې حملې د دفعې اوطرد لپاره مخکنی تياری ولرو، د جدي په پنځم ماښام روسي سلاکارانويوشميرهغه پيلوټان چې د بگرام په فاميليو کې اوسېدل سره راټول کړل او هغوی ته يې وويل، چې نن ډېره خطرناکه شپه ده اوهيڅوک به له خپلو کورونو د باندې نه را وځي، خو دشپې پراتو بجو يو ناڅاپه د افغان سرتيرو او روسانوترمنځ په بگرام کې خونړۍ جنگ ونښت چې ترسهارپورې يې دوام درلود، روسان زورور شول، ځکه ددوی الوتکوترسهاره پورې پروازونه درلودل او افغان الوتکې په ځای ولاړې او دهوايي ډگرد(رنوې) ليکه هم دروسانو په لاس کې وه. افغانستان ته د شوروي د هوايي او ځمکنيو قواوو را تگ سراسرتيروتنه وه، ځکه ددوی راتگ ددوی له اوږد مهالې ستراتيژۍ نه ډېره د مخه خبره وه ، د روسانو په حمله کې



حفيظ الله امين داسې ووژل شو چې تراوسه يې قبرهم نه دی معلوم ، له شپږم د جدی وروسته د کابينې ، سياسي بيرو او دمرکزي کميټې ټول غړي ولايتي منشيان اونور د مخې خلقيان چې ټول ټال شميره يې پنځو زروتنوته رسېده بنديان شول د پلان وزيرصديق عالمياراو د مخابراتو وزيرانجنيرظريف په لومړۍ شپه اعدام شول ، روسانو پر افغانستان د تيري انگيزه له انگريزانوڅخه اخيستې وه چې په لومړي، دوهم اودريم جنگ کې يې په افغانستان کې ماتې خوړلې وه. دشوروي عسکرو پلې قواوې هم د ماوراء النهر د ازبيکانو، ترکانو او قرغيزيانوڅخه ترکيب شوې وې ، شوروييانو پر هغوی زيات باور درلود او د دوی په زعم د پرچم شاخې غړي ښاري اوسېدونکي دي چې له تمدن او فرهنگ سره ژرځانونه عيارولی شي او خلقيان هغه سرسخته غرني او کليوالي افغانان دي چې له وسلې سره سروکار لري، له ټولومهمه داچې د قومي بې اتفاقی بنسټ په افغانستان کې روسانو کېښود چې دا حرکت په ډېرشدت د مجاهدينو ليکوته هم ولاړ او داسې وخت هم راغی چې د افغانستان د سياست په ډگرکې هرڅه په قومي او لساني تاراوتوره ځيرېدل او گنډل کېدل ، روسانو په افغانستان کې ډېره مليشايي سربازانو ته ترجيح ورکوله او ترڅنگ يې په اردو کې هوايي قواوې تقويه کولې. دوی زياتره پښتون نشينې سيمې د بمبارد تر فوکس لاندې را وستلې. د روسانو له ټولومهم او ظالمانه حرکت داچې د مجاهدينو پر ضد عملياتو کې به يې خلقيان ترمخ کول او جنگول، ځينې وختونه داسې هم ...

۷مخ

# ۲۶ دلو برابر است با روز نجات ملی و خروج ارتش سرخ اتحاد جماهیر شوروی وقت از افغانستان



**عزیزی**

۲۶ دلـو مصادف اسـت با روز نجات ملی و خروج ارتش سرخ اشغالگر اتحاد جماهیر شوروی وقت از افغانستان، که کشور ما را ترک کردند. به تاریخ ششـم جدی سال ۱۳۵۸خورشیدی قوای تا به دندان مسـلح شوری وقت خاک افغانستان را مورد تهاجم و اشـغال قرار داد، کـه بعد از مبـارزات و قهرمانی های مردم متدین و خدا پرسـت افغانستان این قشـون متجـاوز در ۲۶ دلو سال ۱۳۶۷ مجبور به ترک کشور ما شد.اشـغال افغانستان توسط قشون سرخ برای مردم ما حادثه دردنـاک و غیر قابـل پیش‌بینی بود که در نتیجـه این تجاوز و لشکرکشی بیش از یک میلیون تن اتباع کشور شهید و هزاران تن معلـول و میلیونها تن دیگر آواره و مجبـور به ترک خانه و کاشانه شـان شدند.اما توانستند اتحـاد و وفـاق بـرادری را در میـان تمام اقوام با هـم برادر در این کشور رقم بزنند و به جهان ثابت سـازند که افغانها در روز های سـخت و دشوار یک صدا و یکپارچه انـد و منافع ملی را بالا تر از منافع فردی و گروهی مـی دانند.با هجوم گسـترده و لشکرکشی قشـون سرخ اتحاد جماهیـر شـوروی وقـت بـه سرزمین افغانستان،مقاومت های مردمـی و اعتقادی در تمام نقاط کشور شکل گرفت و مجاهدین با عزم راسـخ توانستند روس‌ها را که خواب مقاصد شـوم خود را نه تنها در افغانسـتان بلکه در منطقه دیده بودند و می‌خواستند آنرا تعبیر کنند،شکسـتند و در هم کوبیدند،بل نتیجه آن چنانی شـد که اصلاً روس‌ها تصورش را هـم نمی‌کردنـد و نتایج آن به روس هـا نا میمون بـود، چون شکسـت منجر به از هم پاشی شـوروی گردید و تاج و تخت کمونیزم بر زمین خورد و آزادی چندیـن جمهوریت اسـلامی و غیر اسـلامی دیگر نیز در واقع



غرامتی بود که روس‌ها از تجاوز در افغانسـتان پرداختند و آنچه مهـم و زیان بارتر از شکسـت نظامی و ور شکسـتگی بزرگ اقتصـادی و تقسـیم جغرافیای شـوروی وقـت بـود، در واقع شکست مکتب کمونیزم بود که جهان شرق و غرب از گسـترش آن در هـراس بود،عظمت جهاد مردم افغانسـتان گـور برایش حفـر نمـود و برای ابـد دفنش کرد،اما حق احسان بزرگ مردم افغانستان را از شکست کمونیزم هیچ کشـوری حتی همسایگان حق ناشـناس هـم ندانسـتند.

قطعات نظامی روس‌ها با عالمی سر افگنده گی کشور مارا ترک گفتند.

تجاوز اردوی سرخ ضمن اینکه سـاختار جامعه مانرا متلاشـی سـاخت و مسـیر انکشـاف کشورما را به بن بست کشانید، بیش از دومیلیون هموطن مانرا شـهید و تعدادکثیـری معلول و معیوب را در کشور بجا گذاشتند و بیش از چهارونیم میلیون اتباع افغانستان را واداشت تا به کشور هـای بیگانـه مهاجـر گردند. مشکلات فراوان ناشی از تجاوز قشون سرخ در کشور ما تا قرن ها میراث آینده گان خواهد بود. اگر بـه تاریخ باسـتانی ما نظر انـدازی گردد،ما قبل از کودتای هفت ثور ۱۳۵۸خورشیدی همه چیـز داشـتیم،تجارت ما رونق داشـت و امنیـت در دورترین نقاط افغانسـتان تامیـن بود.اما به اثر تجاوز قشـون سرخ این همه دسـتآورد های چندین ساله کشـور را به سـادگی از دست دادیم. در این زمان که بریژنف در گذشـته بـود و قـدرت به میخائیل سرگیویـچ گورباچف متمرکز شـده بود موقع آن رسید تا قوای اشـغالگر پایـش را به شکلی از اشـکال از افغانستان بیـرون بکشـد. گورباچـف اشغال نظامی افغانسـتان را که بـه هدایـت بریژنـف صورت گرفته بـود اشـتباه خواند و به این حقیقت باورمند شـدند که افغانستان را نمیتوان تحت سلطه خویش قرارداد. بادرنظرداشت نقاط متذکره بود که قوای اتحاد شـوروی وقـت از افغانسـتان بتاریـخ ۲۶ دلوسـال۱۳۶۷ کـه مصادف بـه پانزدهـم فبروری ۱۹۸۹میـلادی میباشـد بیـرون شدند. آنها پل حیرتان را بطرف ترمز ترک نمودند و مردم دلیر و مجاهد افغان با تمام شهادت دادن و قربانـی ها علیه اشـغالگران ایستادند و حکومت مجاهدین را در افغانستان روی کار کردند. ولی با تاسف که بعد از پیروزی مجاهدیـن در کشـور آتـش جنگهـای داخلـی ،تنظیمی و گروهی شعله‌ور شد و افغانستان خصوصاً کابـل در اثر جنگهای داخلی به مخروبه مبدل شـد و هزاران مردم بیدفاع کابل هست و بود شـانرا در ایـن جنگها از دست داده و عده‌یی هم به کشور های همسایه متواری گردیدند. خوشـبختانه بعد از سپری شدن پنج سال مبارزه و از خود گذری تحریک اسـلامی طالبان کرام علیـه حکومت شر وفسـاد به پیروزی رسید و ص۶

# ۲۶ دلو سال ۱۳۶۷ نقطه عطف در تاریخ افغانستان



**عبدالحق عتید**

۳۶سال قبل از امروز ، افغانستان یک بار دیگر صفحـه تاریخ را رقم زد وبا بیرون سـاختن ارتش سرخ شـوروی که در سال ۱۳۵۸ افغانستان را مورد حمله قرار داده بود خاطره شـجاعت ومردانگی این ملـت بیچـاره ومظلـوم را ثبـت تاریخ کـرد ، عناصر خود فروختـه ومـزدور نظـام خلق وپرچم کودتای خونین را در سال ۱۳۵۷ علیـه نظـام سردار محمد داود اولین رئیس جمهور کشـور بـه راه انداختنـد ودر نتیجه آن داود خان بـا هفده تـن از افراد خانـواده اش کشـته شـد ونظام جمهـوری وی بدسـت عنـاصر مزدور وابسـته به اتحاد جماهیر شوروی وقت سـقوط نمود . در مورد اینکـه کودتا چگونه اتفاق افتاد وطراحی شـده بود ؛ بحث آن دریـن مختصر گنجایش ندارد وفقط به این نکته اشاره می نمایم که داود خان یک هفته قبل از این پلان آگاه بود وبرای جلوگیری از آن اقدام نمود ، اما وقت آن گذشته بود کـه بتواند این توطئه را مهار نماید ، درست دقیقاً حوالی ساعت دوازده روز پنجشنبه بود که قوای زرهـدار تحت قیـادت صاحب منصبان خلق وپرچم به فواره آب در پشتونستان وات رسیده بودند و در گیری های مسـلحانه به راه افتاد وافراد چند در پیش چشمانم به زمیـن افتادند وجـان دادند ، مردم هرطرف پریشان وسرگردان می دویدند ؛ چون حادثه یی این چنینـی را در زندگی شـان ندیده بودند وبه نظر باشـندگان شـهر کابل این یک حادثه جدید وغیر متوقع بود ، سـاعت سـه بعد از ظهـر آن روز بـود کـه طیارات جت روسـی برفـراز کابـل به پرواز درآمده وارگ وچند موضع نظامی را مورد حمله قرار دادند ، گویند کاردار سـفارت فرانسه از داود خان خواست که به سفارت وی پناه ببرد ، امـا داود خان این پیشنهاد وی را نه پذیرفت وگفت : مرا نشـاید که در چنین حالات دشـوار وسرنوشـت سـاز تن به ذلت دهم وبه فکـر نجات خود باشـم ، اما در مورد خانواده اش گفت: آنها می توانند به سـفارت شـما پناه ببرنـد ، وقتـی اعضای خانـواده اش این حـرف از وی بشـنیدند همه به اتفاق هم گفتند که مـا در کنار تـو خواهیم بود وهیچگاه حاضر نیستیم که برای نجات جـان خود از کنار تو دور باشـیم ، همان بود کـه فردای آن روز همه ایشان جان های خودرا از دسـت دادند ونظام حکومت داود با پیروزی خلقی ها سرنگون گردید و روز بعد دروازه ارگ به رخ تماشاچیان گشوده شد ومردم جوقـه جوقه برای تماشـای ارگ مـی رفتند ، رادیـو کابل اعلامیه هـای پیـروزی را پیهم پخش می نمـود ، مطلبی که درین نوشـتار می خواهم روی آن تأکید بگذارم اینکه بعد ازان چه رخ داد ومردم افغانسـتان دچـار چـه مصیبتی شدند ، گذشـت روز ها اهداف کمونسـت هارا بیان میداشت و فرزندان بیچاره ومظلوم را که در مکاتب وپوهنتون مصروف درس وتحصیـل بودند شناسـایی کرده وآنکه عقیده اسلامیت ودینداری داشت دسـتگیر وبه زندان های جهنمی ایشـان گسـیل داشـتند وانواع عذاب وشکنجه را درحق شـان اعمال می نمودند تـا افراد بیشـتری را ازین طریق شناسایی وبـه زندان هـا معرفـی نمایند ، وضعیـت خیلی پیچیـده وبغرنج گردید وامنیت کشـور با گذشت هر روز وخیم و وخیمتر می شـد که این امر سـبب گردید تا سیلی از طبقـه دانش آموز ودانشـجو وافراد سرشناس مسلمان راه فرار از جهنم کمونست ها را جستجو نمایند وبرای این هدف پاکستان را یگانه پناهـگاه امن دریافتند وبه آن سوی مرز راه هجرت گشودند ، دریـن مـدت صـدای اعتراض ومخالفت علیه نظام کمونسـتی در گوشـه وکنار افغانسـتان بلند شـد ودایـره آن با گذشـت هر روز وسـیعتر می شـد تـا آنکه نظـام موجـود از اداره وکنترول آن عاجز آمد ومجبور شـد که از آقایان روس خود کمک مداخله نظامـی را تقاضا نمایند وبرای این امر قناعت آنهـارا حاصل کردند وهنوز یک سال ازین اقدام سپری نشـده بود که قـوای روس در ٦ جدی از طریق ولسوالی اشکاشم ولایت بدخشـان و بندر حیرتان در ولایت کنـدز واز طریق هوا داخل خاک افغانستان شد ، رسانه های غربی این رویداد را خیلی با اهمیت تلقـی کرده واین رویداد خبرداغ رسـانه های جهانی قرار گرفت ، خلاصـه مطلب اینکه با آمدن روس ها جنگ شدت یافت وامریـکا ومتحدینـش از طریق پاکستان کمک های مالی ونظامی خود را در اختیار مجاهدین قرار دادند وبا گذشـت هرسال ساحه جنگ ص۶

# د نړۍ هر یرغلگر د افغان ولس پر وړاندې ماته خوړلې

**شاه محمود درویش**

روان ۱۴۰۳ لمریز کال د سلواغې میاشـتې شپږویشـتمه نېټـه په افغانسـتان کې د سرو لښکرو د ماتې او له دغه هېواده د تیښـتې له ورځـې سره سـمون خوري، ځکه چې له نن څخـه ۴۵ کاله وړانـدې د (۱۳۵۸) لمریـز کال د مرغومـې په شـپږمه نېټه چې د (۱۹۷۹) زېږدیز کال د دسـمبر له ۲۷ مې نېټې سره برابره ده د پخواني شـوروي اتحاد سرولښکرو هم د انگریزانو د یرغل په څېر د هوا او د حیرتانو او تورغونډۍ له لارې پر افغانستان یرغل کړي و، خو د افغانستان مسلمان او پر آزادۍ مین ملت سراسري پاڅـون وکړ او د هجرت او جهاد لاره یې غوره کړه، د شوروي اتحاد وحشي لښکرو د دې ملت په بمبارولو او عامه وژنو لاس پورې کړ، په زرگونو بېگناه مسـلمانان یې په ډله ییزه توگه په کندوکې وغورځول اود بلدوزرو په وسیله یې تر خاورولاندې کړل، په افغانسـتان کې داسـې کلی او سیمه پاتې نه شوه چې د شوروي اتحاد زغره والو ټانکونو او جېټ الوتکـو حمله او یرغـل نه وي ور وړی، خـو لکه څنگه چې د افغانستان مسلمان او قهرمان ملت مرگ تـه د غلامۍ له ژوند څخه ترجیح ورکوي، نو دغو وحشیانه او عامـه وژنـو د دوی د ایمان او سربښندنې په ولولو کې هیڅ ډول سستي رانه وستلای شوه او د سرو یرغلگرو په مقابل کی یې دخپل هېواد د آزادۍ لپاره یو نیم میلیون شـهیدان ورکړل او پـه میلونونو نـور افغانان معیـوب، معلول او یتیمان شـول، دغه راز یې کلي او کورونه په کنډوالو بدل شول، ټول اقتصادي تاسیسـات یې له منځه ولاړل، خو بیایې هم خپل سپېڅلي جهـاد ته تـر هغو پـورې ادامه ورکړه چې د شوروي سرولښکرو ماتې وخوړه او له افغانستان څخه یې د تیښتې لاره غوره کړه.

هېره دې نه وي چې د افغانسـتان له سپېڅلي جهاد څخه د محکومو ولسـونو د آزادۍ مدرسـه جوړه شوه، د نړۍ په نقشه کې د شوروي اتحـاد نـوم ورک شـو، د لېنین مجسمه رانسکوره شوه، د جرمني هېواد مرکز د برلین ښـار په ختیځ کې د ختیځ او لویدیځ جرمني په نامه درول شوی دیوال ونړول شو او له څلویښـتو کلونو راهیسی د روسـیې لـه حاکمیـت څخه وروسته د چکوسلواکیا د خلکو پاڅون روسي تسـلط تـه د پای ټکی کېښـود، لنډه داچې نړیوال په دې وپوهېدل کوم ولسونه چې په خپله غلامۍ ته غاړه کې نږدي هیڅکله هم پـه زور غلامي پرې نه شي تپل کېدای. اوس شـوروي اتحاد ورک شوی، خو افغانستان لاژونـدی دی او د افغانانو په زړه کې د اسـلام ژوند ښوونکی روح چلیږي، ښکېلاکگرو که د تاریخ پـه اوږدوکې پر دې اسـلامي او آزاده خـاوره هر څومره یرغلونه وکړل، خو پـه پای کې یرغلگر نیست او نابود شول او افغانستان د یو اسلامي او آزاد هېواد په توگه سرلوړی پاتې شـو او څو چې دا دنیا ودانه وي افغانستان به ژوندی وي، البته دایو رښتینی واقعیت دی چې افغان ویاړلي ولس د تاریخ په اوږدو کې تـل د پردیو زورواکو او ځان غوښتونکو یرغلگرو له بې رحمه، ناروا او د هرراز انساني اصولـو او ارزښـتونو پرخلاف له وحشي تاړاکونـو سره مخامخ شـوي، خو تاریخ شاهد دی چې باتورو افغانانوتل د ملي یووالي په عالي روحیـه او د هېواد پالنې په ځانگړي احسـاس سربښندونکې مبـارزې کړي او د پـاک خدای «ج» په مرسته، فضل او کرم سره یې د یرغلگر دښمن پر وړاندې تل برې موندلی دی، البته د روسانو له یرغل څخه وروسته د امریکا په مشري د ناټو غـړو هېوادونو هم پرافغانستان یرغل وکړ چې دوی هم له ماتې سره مخامخ شـول او اسـلامي امارت پر ټول افغانستان واکمن شو، نو اوس چې په هېواد کې شـکر الحمدلله د یو اسلامي نظـام درلودونکي یـو، پاک الله «ج» دی تل ۶مخ

# افغانانو نړۍ د شوروي له ښکېلاکه وژغورله



**مولوي محمد علي عظمت**

روسانو له ډېرې پخوا پر استعمار لاس پورې کړی و، خپل شاو خوا واړه اولوې هیوادونه او ریاستونه یې نیول او په خپـل هیواد پورې یې تـړل ، بیا کله چـې د لینین په مشرۍ کمونیست گوند دروسیې واک ترگوتو کړ، نو د کور ، کالي، ډوډۍ شعارونو ته یې زور ورکړ، پرگاونډیو هیوادونو یې یرغلونه پیل کړل، هغه یې ونیول او د اتحاد جماهیرشـوروي په نامـه یې یوه لویه ستړواکې تاسیس کړه، د نړۍ په گوټ گوټ کې یې دکمونیستي مفکـورې پـر اسـاس هیوادونه اوگوندونه تر خپلې اغېزې لاندې راوستل.

شـوروي اتحاد لـه امریکا سره مقابله پیـل کـړه. دواړو پوځي بلاکونه جـوړ کړل چې دامریکا بلاک تراوسـه دناټو په نامه شته او فعال دی، خو دشـوروي اتحاد بلاک چې د وارسـا په نامه یادېده ، له منځه تللی. اوس هلته په پولنډ کې امریکایي ځناورمېشت دي ، چې له روسانو څخه د اوکراین د ژغورلو لاپې وهي.

شـوروریانو لـه ډېـرې پخـوا تـودو اوبوته درسېدلو خوبونه لېـدل ،هماغـه وو، چـې زموږ په هیـواد کې یې خپـل برېښي ورزول او دهغـو په واسـطه یې دسردارمحمدداودخان حکومت رانسـکور او افغـاني ملحدان یې دواک پرگـدۍ کېنـول لومـړی نورمحمد تره کی پر پارکال سپور شـو او هغه دخپل وفادار شاگرد حفیـظ الله امین له خـوا خمیره کړای شـو، خو نوموړی هم څو



میاشتې وروسته د ۱۳۵۸ لمریز کال د جدي په شـپږمه د شورویانو له لوري ووژل شو او دشورویانو له ټولو وفادار غلام ببرک پر شوروي ټانکونو سپورکابل ته راوستل او د واک پر گدۍ کېنول شو.

د ۱۳۵۸ هجـري شـمسي کال دجدي په شپږمه شوروي خوگانو زمـوږ پرهېـواد نـاروا نظامـي تېـری وکړ، څـو تـودو او بوته ځان ورسـوي،ناټووال ووېروي، پرشایې کړي او ټوله نړۍ ونیسي ، شـورویانو به ویـل : تاریخ نه تکرارېږي ،یعني هـدف یې داو چې کومـه خـاوره دوی لاندې کړې وه، بیایې بېرته نه وه پرېښې ، خو دافغانستان پرسپېڅلې خاوره تېرې ورته ناسور شو ( د شوروي اتحاد وروستي دیکتاتور میخایل گرباچوف په خپله دناسور په نامه یاد کړ. دامریـکا د یرغل پرمهال واکمـن بوش ته هـم گرباچوف وویل چې پرافغانسـتان یرغل مه کوئ ،خو مغرور واکمن بوش ونه منله ، صلیبـي اشر یې تیار کړ او له ځمکې او هواڅخه یې صلیبي سریخواره رامارش کړل چې افغان مجاهدینو دتندریزو استشـهادي عملیاتـو په نتیجه کـې صلیبیان ځوړند سرونه اوخړې سـترگې له افغانستانه ووېستل او افغاني کرایي گوډاگیانو یـې له دوي نه مخکې پښې سپکې کړې.

گرباچوف صلیبیانو ته ښه مشوره ورکړه، خو هغوی ونه منله

هو! شورویانو چې کومې خاورې نیولې وې، هغه یـې بېرته نه وې خوشـې کـړې، بلکـې هلته یې کمونیستي افکار خپاره کړي وو ، چې لاتراوسه هلته چلیږي. واضح دې وي، هغـوی تاجیکسـتان ، ازبیکستان، ترکمنستان، قزاقستان ، قرغیزسـتان ، اذربایجان او نور هېوادونه نیـولي وو. زموږ دجهاد له برکته یې استقلال او خپلواکۍ واخیستلې ،خو واکمنان یې دتېرو کمونیستو واکمنانو په پلوی روان دي ، نظامونـه هماغه د شـوروي اتحاد د زمانـې دي، کوم تغیر او بدلون نه په کې برېښي!!

شـورویانو پـه افغانسـتان کې شپاړس لکه افغانان شهیدان اوپه لکونو یې ټپیان کـړل، خو افغان مجاهدینو هم داسـې گوزارونه ورکړل چې تودو اوبو ته د رسېدو خوب یې دروغ شـو او په خپله شوروي اتحاد وشـړېده او (۱۵) آزاد او خپلواک هیوادونه ترې را ووتل ، دوی ( دشورویانو جاهلو واکمنانـو) دانه ویـل چې گرمو اوبوته به قطبي خوگان نه رسېږي ، بلکې دافغانسـتان لـه خاورې به تېرېږو، پاکسـتان به نیسو او سمندرته به ځان رسوو. ۶مخ

# په افغانستان کې د روسانو د ستراتیژیکو موخو شالید

عبدالرحمن فضلي



روسانو له کمونیستي رژیم د مخه د بلشویکانو له زماني هڅه درلوده چې له افغانستان سره د حسن همجوارۍ ترنامه لاندې دوه مخې سیاسي او دیپلوماتیکې اړیکې وپالي، د دوی دا اړیکې د دې لپاره نه وې چې ګواکې افغانان یې خوښېدل یا یې د بشر پالنې په احساس له دوی سره مرسته کوله ، بلکې د بلشویکانواو وروسته د کمونستانو دواړو ستراتیژي د افغانستان لپاره د یوې سیکې دوه مخونه وو، هغه داچې دواړو غوښتل افغانستان یو وخت په خپل استعماري جال کې را ګیرکړي اوخپلونهایي موخوته چې هغه د هند د سمندر تودې اوبه وې، ځان ورسوي.

روسانو خپلې هڅې جارې ساتلې او تل به یې افغان واکمنو ته رښتیا او درواغ وعدې ورکولې چې د انګریزانو د یرغل په مقابل کې به یې مالي او نظامي ملاتړکوي، خوکله چې د افغان او انګلیس په دویمه جګړه کې امیر شیرعلي خان د روسانود مرستې په تمه مزارشریف ته ولاړ، نو د روسانو له مرستې ناهیلی اوهملته زاره چاودی شو، د امیرعبد الرحمن خان اوحبیب الله خان د واکمنۍ پرمهال د روسانو لاسوهنې چندان مشهودې نه وې ، ځکه روسان د افغانستان په اړه له انګریزانو سخت ډارېدل چې دا وخت د افغانستان بهرنی سیاست دپردې ترشا په انګریزانو پورې تړلی و ، د افغانستان د استقلال له حصول سره سم کله چې امان الله خان واک ته ورسېد، نو د روسانوسترګې وغړېدې او یوځل بیا یې سیاسي ، سر او کله، د افغانستان د بهرني سیاست په ډګرکې را څرګند شول، له امیر امان الله خان سره یې اړیکې تازه کړې او د حسن همجوارۍ یوداسې تړون یې ورسره لاسلیک کړ چې افغان کمونستانو به د دوستۍ (!) دغه تړون تل د ملت په مخ را وېسته اود امان الله خان د وخت د [افغان شوروي د دوستۍ ] پر مخینه به یې افتخارکاوه، خوفرصت طلب روسان بیا هم د شیطانت په کمین کې ناست وو، څونادرخان قدرت ته ورسېد، نادرخان له روسانو سره هېڅ مینه نه درلوده اود تقریباً د دوو لسیزو لپاره روسانو په افغانستان کې د ځان په ګټه کومه سیاسي اودیپلوماتیکه لاسته را وړنه، نه درلوده، ځکه محمد ظاهرشاه هم د نادرخان زوی، له روسانو سره د خپل پلارپه پله نقش قدم پرمخ روان و، خوبیا هم روسانو هڅه کوله چې د محمد زیانو په کورنۍ کې یوداسې څوک ومومي چې د خپلو شیطاني موخوپرمحوریې وڅرخوي، څوسردارمحمد داودخان یې په چل او فریب د ځان ملګرى کړ، که څه هم په بنیادي لحاظ یاد سردار، د روسانوملګرى نه و، خوپه دنیوی سیاست کې شورویانوته خوشبین و، د سردارمحمد داودخان ملاتړ و، چې کمونستانو په ۱۳۴۳ هجري کال د تره کي په مشرۍ د کابل ښارپه ۴مه کارته کې د کمونیزم د الحادي مکتب لومړۍ ګنګره جوړه اود افغانستان د بربادۍ د بنسټ ډبره یې کېښودله او داسې بې عقیدې او کم ظرفیته کسان پکې را ټول شول چې د افغانانو ملي او معنوي ارزښتونو ته یې اهمیت نه ورکاوه، ځکه دغه کسان په داسې کورنیوکې تربیه او رالوی شوي وو چې هلته د معنویاتو څرک کمزورى و.

له څه مودې وروسته د خلق ګوند وپاشل شو او د پرچم په نامه یوه څانګه ترې بېله شوه چې دغه انشعاب هم د روسانو یوځانګړی ستراتیژیک مانور و چې پرافغان کمونستانو یې وواهه ، ځکه دوی یې داسې سیالۍ ته اړویستل چې یو د بل پر ضد به یې ځانونه د روسانو په حلال خدمتۍ کې قرباني کول، د دغه پلید مکتب شاګردانوخپلو معنوي ارزښتونو ته داسې شا کړه چې ببرک کارمل په یوه بیانیه کې د کمونیزم پرموسس العیاذ بالله درود ووایه، چې موضوع د عام ولس د سخت نفرت سبب وګرځېدله ، له دې وروسته مسلمانان بیدار شول او ددوی پر ضد په لاریونونو کې راڅرګند شول، د زمانې په تېرېدو سره کله چې لاریونه اوج ته ورسېدل، نوحکومت هم د پردې ترشا د کمونستانو پلوی کاوه، ځکه هغوی یې له مسلمانانو متمدن ګڼل (!).

د سردارمحمد داود خان د کودتا په ترڅ کې د لاریونونو لړۍ پای ته ورسېده او د یاد سردارپه کابینه کې له کمونیستي مشرانو پرته ، زیاتره کمونستانو غړیتوب هم درلود، روسان د سردار محمد داود خان په اړه بیا هم محتاط وو، د هغه پراختیایي پلانونه یې ډېرپه غورڅارل ، ځکه یاد سردار اصیل زاده و، خط مشي یې ملي او په آسانۍ سره د روسانو په محور نه څرخېده، څو روسانو له څلورو کالو او ۱۹۰ ورځو انتظار وروسته دابلوف په نامه د خپل یوه فساد پیشه سفارتي غړي په ذریعه میر اکبرخیبر وواژه اوپه دې توګه یې کمونستانو ته د کودتا پلمه په لاس ورکړه، که څه هم داودخان موضوع ته دومره اهمیت نه ورکاوه خو شیطان وزمه روسانوداسې پلان جوړ کړی و چې د داود خان د رژیم نسکورېدل پکې حتمي و.

کمونستان د کودتا له لارې بریالي شول او په دې توګه د روسانود ستراتیژۍ لومړۍ برخه په بریالیتوب سره سرته ورسېده اوپه دویمه برخه یې چې مستقیم یرغل و، په بېړه کار روان شو، روسانو په لومړي ګام کې په نظام کې کمونستان...

۷مخ

# د معادنو د شفاف استخراج او ساتنې لپاره د اسلامي امارت هڅې

څواک یوسفزی

د افغانستان په غرونو کې داسې خزانه ده چې که څوک د نړۍ په هر کونج کې د شتمنۍ د یوې معجزې کیسه وکړي، زموږ طبیعي زېرمې به په رښتیني بڼه وړاندې کړي. یا په بل مثال چې که د نړۍ ستر شرکتونه یې خوب ووینې، نو شپه به یې په همدې فکر سبا کېږي. له سرو زرو او یاقوتو نیولې تر مسو او لیتیمو پورې، دا وطن د یوه ستر نعمت په څېر له ارزښتناکو منابعو ډک دی. خو افسوس چې په تېرو کلونو کې دې شتمنۍ ته د ملي پانګې پر ځای د غنیمت په سترګه کتل کېدل.

هر څوک به په دې هڅه کې و، چې د کوم غره په یوه کونج کې د غیرقانوني کیندنې ګټور راز ومومي. که چا به یې پوښتنه وکړه چې «هلته څه کوې؟» ځواب به یې داسې و: «یاره، د غره له سره یو دوه ډبرې راپاتې دي، غواړم خپل کور پرې جوړ کړم!»

خو الحمدلله چې دا وخت پای ته رسېدلی دی. اسلامي امارت د معادنو د شفاف استخراج او ساتنې لپاره داسې جدي او بېساري ګامونه پورته کړي چې نه یوازې د غرونو وضعیت بدل شوی، بلکې د خلکو ذهنیت هم. اوس د معادنو د مدیریت داسې منظم سیستم رامنځته شوی چې د هر ګرام زېرمو حساب به په دقیق ډول کېږي.

له نړیوالو قراردادونو نیولې د تخنیکي متخصصینو تر ګومارنې پورې، هر څه په داسې ډول ترتیب شوي چې نه یوازې د دې شتمنیو ساتنه به وشي، بلکې افغان ولس ته به یې ګټه په ښکاره توګه ورسول شي. د معادنو د استخراج او ساتنې لپاره جدي قوانین نافذ شوي او د غیر قانوني کیندنو مخنیوی داسې شوی چې په اصطلاح هغه زاړه «ماین کشان» به اوس له دې ویرې له غرونو تښتي چې ښایي د یاقوتو پر ځای خپله د قانون په جال کې ګیر نشي.

دا اقدامات د دې لپاره نه دي چې یوازې د قانون تنفیذ وښودل شي، بلکې هدف دا دی چې افغانستان د خپلو شتمنیو په سمه توګه مدیریت وکړي او د دې وطن د اقتصادي راتلونکې لپاره د یوې نوې دورې پیل وکړي. د دې هڅو برکت به دا وي چې زموږ غرونه به له دې وروسته د ملي ویاړ او پرمختګ سمبول وي.

د اسلامي امارت حکومت د معادنو د استخراج په برخه کې د هغو ستونزو د حل کولو لپاره کار کوي او کړې یې دي چې په تېرو حکومتي دورو کې یې د معادنو په غیر قانوني استخراج او د شفافیت د نشتوالي سبب شوې وي. په دې پروسه کې د اسلامي امارت حکومت نه یوازې د قانون پلي کولو ته جدي پام کوي، بلکې د معادنو د استخراج د پروسې د پرمختګ لپاره نړیوالو معیارونو ته هم ارزښت ورکوي. د معادنو د استخراج لپاره یې د شفافیت د پلي کولو ژمنه کړې، ترڅو د هېواد اقتصادي وضعیت پیاوړی او په ټوله کې د معادنو استخراج له ککړو او غیر قانوني شبکو څخه خلاص کړي.

د اسلامی امارت د حکومت دغو اقداماتو له یوې خوا د معادنو د شفاف استخراج لپاره زمینه برابره کړې، بله خوا یې د طبیعي منابعو ساتنه او د هغو د پایدارې استفادې لپاره پاملرنه کړې ده. د معادنو د استخراج په برخه کې د اسلامي امارت د حکومت هڅې هغه شفافیت راوړي چې مخکې نه و لیدل شوی. د دې ټولو اقداماتو هدف دا دی چې افغانستان له خپلو طبیعي منابعو څخه د پایدارې ګټې اخیستلو له لارې د اقتصادي پرمختګ په لور روان شي او د خپلو طبیعي شتمنیو ساتنه وکړای شي.

دا چې افغانستان د طبیعي منابعو له لحاظه یو له بډایو هېوادونو څخه بلل کېږي، چې په کې معادن لکه طلا، مس، زغال او داسې نور د ځمکې لاندې اوبو منابع او لیتیوم د ارزښت وړ دي. د افغانستان د معادنو ټول ارزښت تر ۳ ټریلیونو ډالرو پورې اټکل شوی چې د دې هېواد د اقتصادي پیاوړتیا لپاره یو ستر فرصت دی. که دغه معادن په مسلکي او علمي ډول وکارول شي، نو دا نه یوازې د هېواد د اقتصادي وضعیت په پیاوړتیا کې مرسته کوي، بلکې نړیوالو بازارونو کې د افغانستان د ونډې زیاتولو سبب هم ګرځي. په دې توګه، د معادنو له استخراج څخه په غوره ډول ګټه اخیستل د افغانستان د ځان بسیا کېدو لپاره ډېر مهم دي. که چیرې معدني منابع په علمي او له چاپیریال ساتنې سره سم وکارول شي، نو د افغانستان اقتصاد به په مثبته توګه وده وکړي.

د افغانستان معادن د نړیوالو شرکتونو او سرمایه ګذارانو لپاره د پام وړ فرصتونه وړاندې کوي، ځکه چې د دې معادنو استخراج کولای شي د هېواد اقتصادي وضعیت ته په بې ساري توګه وده ورکړي. په همدې وخت کې، د معادنو استخراج باید د یوې شفافې او قانوني پروسې له لارې ترسره شي، څو د هېواد طبیعي منابع په یوه علمي بڼه او د چاپیریال ساتنې سره سم مدیریت شي. د دې معادنو د استخراج پروسه په تېرو لسیزو کې د غیر قانوني کړنو، فساد او د چاپیریال د تخریب له کبله زیانمنه شوې وه.

د معادنو د استخراج د شفافیت او د غیر قانوني استخراج د مخنیوي لپاره د اسلامي امارت حکومت بېسارې جدي ګامونه اخیستي دي.

د تېر حکومت د ناکامو پالسیو په اړه یادونه ضروري ده، چې د معادنو د استخراج پروسه یې د پراخ فساد او غیر قانوني کړنو له امله زیانمنه کړې وه. د غیر قانوني شبکو له خوا د معادنو استخراج په بې رحمۍ سره ترسره کېده، چې زموږ د ګران هېواد طبیعي منابعو ته یې لوی زیان اړاوه. د دې پروسې په ترڅ کې، د پراخ فساد له امله، نه یوازې معدني سرچینې ضایع شوې، بلکې د اقتصادي او ټولنیزو پروژو لپاره د جوړو شویو فرصتونو د له لاسه ورکولو لامل هم شوی.

د فساد پراخې شبکې، چې د معادنو د استخراج پروسې کې دخیلې وې، د دې لپاره یې کار وکړ چې د ملیاردونو ډالرو په ارزښت معادن په غیر قانوني توګه بهر ته ولېږدول شي، چې نه یوازې افغانستان ته یې زیان اړاوه بلکې د هېواد د حکومتي سیستم د کمزورتیا او د فساد د پراخولو لامل هم و.

د اسلامي امارت حکومت د معادنو د استخراج د شفافیت لپاره یو لړ قانوني تدابیر، مقررات او پالیسۍ معرفي کړي دي، څو دغه پروسه په غوره ډول ترسره شي. د معادنو د استخراج له لارې د هېواد اقتصاد بې له شکه چې پیاوړی کېدلی شي، خو یوازې د شفافیت او قانونیت پر بنسټ ترسره شوی استخراج کولی شي د هېواد لپاره ګټور ثابت شي. په دې لړ کې، د معادنو د استخراج لپاره د نړیوالو معیارونو پلي کولو، د هغو قانوني چارې او د چاپیریال ساتنې لپاره اقدامات د اسلامي امارت حکومت له مهمو هڅو څخه دي.



د معادنو د استخراج پروسې شفافیت په دې کې دی چې د معادنو د استخراج له لارې د فساد مخه ونیول شي او یوازې له قانون سره سم پروسه پیل شي. دغه اقدامات نه یوازې د هېواد د اقتصادي وضعیت په ښه کولو کې مرسته کوي، بلکې د معادنو د استخراج ځایونو کې د امنیت ټینګښت او د خلکو د ژوند کیفیت د پام وړ لوړوي.

د افغانستان د معادنو له استخراج سره سم، د طبیعي اکوسیستم ساتنه هم خورا اړینه ده. معادن چې د طبیعي منابعو برخه جوړوي، باید په داسې ډول استخراج شي چې د طبیعت، ځمکې لاندې اوبو، او هوا ککړتیا ته زیان ونه رسوي. په دې برخه کې د اسلامي امارت حکومت د شفافیت او قانونیت ترڅنګ د چاپیریال ساتنې لپاره هم جدي اقدامات کړي دي. د معادنو د استخراج لپاره د قوانینو وضع کول او د چاپیریال ساتنې لپاره د تخنیکي پوهې کارول د دې لپاره دي چې د استخراج پروسه د طبیعت له زیان منلو څخه پاکه شي. د معادنو د استخراج پر مهال د چاپیریال ساتنې لپاره اقدامات اړین دي، چې د افغانستان د طبیعي اکوسیستم د خوندي کولو لپاره د حکومت له لوري جدي تدابیر نیول شوي دي.

د معادنو د استخراج پروسه که په علمي او له نړیوالو معیارونو سره سم ترسره شي، نو نه یوازې د طبیعي اکوسیستم ساتنه کېږي، بلکې د معادنو د استخراج ځایونو کې د ککړتیا مخنیوی هم کېږي. د معادنو د استخراج پر مهال

۶مخ

# باد او هوا

مفتي عزيزالرحمن ((عزيزي))

له ادمه تر دې دمه که چېرې خپل تېر ژوند وڅارو، هر انسان ټولنيز ژوند ته او بيا ټولنه ډېر څه ته اړتيا لري، په ځانګړې توګه هغو څلورو عناصرو ته خورا اړتيا ده چې زموږ ژوند ورپورې تړلی دی، چې په هغو کې اوبه، خاوره، هوا او اور شامل دي، چې په دې کې هوا له هغو اړينو عناصرو څخه بلل کېږي چې له دې پرته ژوند امکان نه لري. باد او هوا په ټولو چارو کې مهم رول لري، باد د فضا له لارې د هوا حرکت دی، يعنې هوا ته حرکت ورکوي. (تفسير القرطبي ۲/ ۱۹۹)

په باد سره يخني او ګرمي له يو ځای څخه بل ځای ته لېږدول کېږي، د نباتاتو په وده کې مهم رول لري او ميوه دارې ونې پرې بارداري کېږي. که چېرې يو ساعت هوا ودرېږي، د ځمکې او اسمان تر منځ به هر څه بد بوی ونيسي. په قرآن کريم کې د باد په اړه دوه نومونه (رياح) او (ريح) کارول شوي، د رياح نوم د هغو بادونو لپاره کارول شوی، چې زېری پکې نغښتی وي او ريح له يونس سورت څخه پرته هغه باد ته ويل شوی، چې له عذاب څخه ډک وي. کله به چې باد راوالوت؛ نو پيغمبر ﷺ به دا دعا کوله: اللَّهُمَّ اجْعَلْهَا رِيَاحًا وَلَا تَجْعَلْهَا رِيحًا.ژباړه: «ای الله دغه بادونه وګرځوه او باد يې مه ګرځوه» دلته مطلب دادی چې باد په جمعې سره راشي د رحمت معنا ورکوي او که په مفرد سره راشي د عذاب معنا ورکوي.»(تفسير القرطبي)

يعقوب عليه‌السلام چې د خپل زوی په بېلتون کې يې خورا زيات دردونه او ستونزې وګاللې او د زوی په جدايۍ کې يې دومره اوښکې تويې کړې، چې آن د سترګو ديد يې هم له منځه ولاړ؛ خو کله چې د بېلتون شپې اوږدې شوې، يوسف عليه‌السلام خپلو ورونو ته کميس ورکړ او د کنعان په لورې يې رخصت کړل. د مفسرينو په وينا دا واټن د اتو فرسخو او يا د اتو ورځو د مسير په اندازه و، چې، د خپل زوی بوی يې حس کړ؛ نو سمدلاسه يې خپلو لمسيانو او يا ناستو خلکو ته وويل: ماته د خپل زوی خوشبوداره وږمه راغله. مالک بن انس رضی الله عنه وايي: يعقوب عليه السلام ته هغه باد وږمه راوړه کوم باد چې سليمان عليه السلام ته د سترګو په رپ سره د بلقيس تخت راوړ. (تفسير مدارک ۲ / ۱۳۳ او تفسيرالقرطبي ۹/ ۲۶۰)

له لرې اوږدې مسافې څخه د باد په توسط د يوسف عليه السلام وږمه راوړل او د خپل پلار سپړمو ته يې رسول معجزه ده. لکه څرنګه چې موسمونو کې بدلون راځي، دغه راز بادونو او هواګانو کې هم بدلون راځي، چې تفاسيرو د بادونو لپاره لس ډولونه راوړي : صبا چې ګرم او وچ باد دی، دغه باد ته د ښيګڼې باد وايي، له ختيځ څخه لويديځ ته روان وي .عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ: (نُصِرْتُ (۳) بِالصَّبَا وَأُهْلِكَتْ عَادٌ بِالدَّبُورِ). زموږ پيغمبر صلی الله عليه وسلم فرمايي: د احزاب په غزا کې زموږ مرسته په صبا باد سره وشوه او په دبور باد سره عاديان هلاک شول. (تفسيرالقرطبي ۲/ ۱۹۷)

دبور باد چې يخ او لوند باد دی او له لويديځ څخه ختيځ لور ته راپورته کيږي . بل يې داسې هم شته چې له جنوب څخه شمال او شمال څخه جنوب لور ته روان وي، دبور باد ګرم او دا يې يخ او وچ دی. تيز باد چې عاصف ورته ويل کيږي، هلاکوونکي او هر څه له منځه وړونکي دی. حصباء باد چې تيږي له ځان سره وړي. بل باد چې موږ يې بربوکۍ بولو او په عمودي ډول د اسمان لور ته پورته کېږي. همدا رنګه د سموم، وهم او صرصر په نامه بادونه هم شته. (تفسيرالقرطبي او عزيزالتفاسير)

په باد کې يو ستر قوت دی، چې د عاديانو په څېر قومونه يې هلاک او ستړي ماڼۍ يې نړولي، بي بي عايشه رضی الله عنها فرمايي: د باد او وريځې په لېدو به د رسول ﷺ رنګ مبارک کې بدلون راغی؛ خو کله به چې باران پيل وکړ خوښ به شو.

باد او هوا د وريځو په وړلو راوړلو، باران کولو، کښتۍ روانولو او همداراز پرواز کولو کې رغنده رول لري. الله ﷻ په خپل کتاب کې وايي: ژباړه: که الله وغواړي باد به غلی کړي او دوی (کښتۍ) به د سمندر پر شا ټپ ولاړې پاتې شي. [سُورَةُ الشّورىٰ : ۳۳]

همداراز د الوتکو جوړښت لومړی د مرغانو له خلقيت څخه شوی او مرغان هم د هوا په توسط په خپلو وزرو او لکۍ الوځي: ژباړه: ايا دغو خلکو کله الوتونکو ته نه دي کتلي چې په اسماني فضا کې په څه شان مسخر دي؟ دوی له الله څخه پرته چا ساتلي دي؟ په دې کې د هغو کسانو لپاره ډېرې نښې نښانې شته چې ايمان راوړي. (سُورَةُ النّحل ۷۹)

د غشي په نښو ويشتلو کې هم مهم رول د ښکو وي چې په وروستۍ برخه کې ورته لګيدلي وي همداراز يو کاغذپران هم په جوړښت کې د مارغه په څېر وي وزرې لري، لکۍ ورکړ شوي وي څومره چې پورته کيږي هغومره سپکېږي او هوا کوي. الوتکې هم چې پرواز کوي بنستيز لامل يې هوا ده، هرڅومره يې چې لوړوالی ډېر وي ، وزن يې کمېږي؛ ځکه چې زموږ پورته هوا لږه ده، د تودوخې درجه هم د هوا د پراخېدو او کثافت له لاسه ورکولو لامل کيږي؛ نو لکه څنګه چې له لوړوالي سره، د تودوخې درجه لوړه وي، فشار يې ټيټ وي.

د عمرې په سفر روان وم د الوتکې يو خادم چې اتلس کاله يې دنده ترسره کړې وه هغه راته کړه اوس چې په کومه فضا کې موږ روان يو، د تودوخې درجه يې خورا لوړه ده؛ نو ما ورته :

په الوتکه کې اکسيجن له کومه کېږي، هغه راته وويل چې په‌خپله الوتکه کې اکسيجن توليدېږي.

د الوتکې ښکته او پورته کېدل په ثابتو وزرو کېږي، په دې کې يو ډول څرخونه دي چې هر لور ته يې تاو کړي الوتکه هم ورسره تاوېږي؛ نو له دې څخه څرګنده شوه، دا څه چې په هوا کې خوځښت کوي د هوا او باد په واسطه ترسره کېږي .

باد او هوا دواړه د الله ﷻ په قدرت کې دي. کله رحمت او کله عذاب شي.

کونړ د پوهانو او شاعرانو په روزلو کې د هېواد يو فرهنګپال ولايت دی، چې تر دې دمه يې ډېر شاعران او ليکوالان ټولنې ته وړاندې کړي دي. د خپرو شويو څېړنو او ګروېږنو له مخې اباسين سېلاب د کونړ ولايت د وټه پور ولسوالۍ په يوه روڼ انده او فرهنګپاله کورنۍ کې نړۍ ته سترګې پرانيستي. کله چې افغانان جګړو وځپل او دې ته يې اړ کړل؛ څو د سر پناه لپاره له هېواده بهر لاړ شي، د سېلاب پلار هم دې ته اړ شو چې ګاونډي هېواد پاکستان ته کډه وکړي. څو کاله وروسته، سېلاب د يوې ښې را تلونکې د جوړولو په خاطر په يو ښوونځي کې داخل شو. کله چې د ښوونځي له لومړي پړاوه ووت، يعني منځنی ښوونځی يې پيل شو، ورسره يې په ښوونځي کې د معارف پېژاندې، ستاينې او داسې نورې ترانې، نعتونه او د نورو شاعرانو شعرونه به يې د ستېج پر سر ويل. کله نا کله به يې د ستېج نطاقي هم کوله، چې د ښه رول لوبولو امله خپلو ښوونکو د يو تکړه او با استعداده زده کوونکي په سترګو ورته کتل. د ورځو په تېرېدو سره اباسين سېلاب د ترانې په ګروپ کې لا پرمختګ وکړ، د ترانې سرتيم او له هغې وروسته د ټول ستېج کنټرولوونکی او جوړوونکی شو. له هغه وخته يې د شعر له لوستلو سره ډېره مينه پيدا شوه، د ډېرو شاعرانو شعرونه به يې لوستل. په همدې ترتيب يې ښوونځی تر دولسم ټولګي پورې ورساوه او د فراغت سند يې تر لاسه کړ.

کله چې کورنۍ يې بېرته خپل ګران هېواد افغانستان ته را ستنه شوه، د پخوا په څېر يې له شعر او شاعرۍ سره مينه وه، د ترانو اورېدلو ته به يې هم ډېر وخت ورکاوه. د وخت په تېرېدو سره يې په رسنيو کې کار پيل کړ. د نورو کارونو ترڅنګ يې ځينې تفرېحي خپروني او ورسره يې د شعرونو په دېکلمه کولو کې هم ونډه اخيسته. د شعر په دېکلمه کولو کې ډېره ښه وړتيا لري. له همدې ځايه وو چې د شعر او شاعرۍ ډګر ته يې را ودانګل،

## د شاعرانو غږ

نوري

ډېر شعرونه او غزلې يې وليکلې، خو په وينا يې زړه يې پرې اوبه نه دي څښلي، څو يې د کتاب چاپولو لپاره انتخاب کړي. خو اراده لري چې په راتلونکې کې به يې ضرور اثار چاپ شي، يوازې دومره وخت پاتې دی، چې خپل شعرونه شاعرانو او استادانو ته وښيي. **د هغوی د خوښې مطابق به انتخاب کوي، لوستونکو او مينه والو ته به يې وړاندې کوي. د تلويزيون په پرده ډېر ځله د شعر په دېکلمه کولو او د نورو تفريحي خپرونو په وړاندې کولو سره ليدل شوی. له اکټ هنر سره يې ځانګړې مينه وه او دې مينې او علاقې تر دې را ورساوه، چې بايد په راتلونکې کې په فلمونو او ډرامو کې هم کار پيل کړي او فعاله ونډه پکې واخلي. له فلمي ستورو او د هغوی له رول سره يې مينه خورا زياته وه. له دې وروسته د ښه کار په پايله کې دا ورته څرګنده شوه چې اوس کولای شي په هر ډول فلم کې هره صحنه چې ورسپارل کېږي په برياليتوب سره يې تر سره کړي. اباسين سېلاب ويلي« تر اوسه د افغانستان د سينمايي فلمونو لپاره د پام وړ کار نه دی شوی.» دی هيله لري څو په را تلونکي کې د خپل هېواد سينما ته هم د پام وړ خدمت وکړي، څو د نوروهېوادونو په شان زموږ د فلم هنر هم وده وکړي. نوموړی چې غواړي د شاعرۍ ترڅنګ يو تکړه او مشهور فلمي ستوری شي، له تلويزيوني سريالونو سره هم ډېره علاقه لري، چې پکې فرهنګي او هنري رول ولوبوي.**

**په سينمايي فلمونو کې لوبېدل خو ورته د خوب رښتيا کېدل ښکاري او هڅه کوي، څو په هره بيه ، چې وي په سينمايي فلم کې د يو غوره اکټور په ښه کار وکړي.** په را تلونکي نږدې وخت کې به په دې وتوانېږي چې د افغانستان لپاره هم سينمايي فلمونه جوړ کړي، چې ټولنې ته مثبت پيغام ولري. سېلاب په دې هڅه کې دی چې څنګه وکولای شي، د خپل هېواد سينما ته وده ور کړي او په را تلونکي کې د ښو سينمايي فلمونو ننداره کول پيل او ډېر مينه وال پيداکړي. دی د ګڼ شمېر شاعرانو ښکلي نظمونه، غزلې او شعرونه هم دېکلمه کوي، چې په دې سره يې د غږ مينه وال څو برابره زيات شي، تل هڅه کوي داسې انتخاب وکړي، چې له احساسه ډک مثبت پيغام ولري، تر ډېره يې خلک خوښ کړي او بيا د اورېدونکو او مينه والو زړه پرې خوښ شي. د شعر په ټوله مانا، ترڅ او ډيزاين غور کوي. ښه په شوق يې له ځانه سره په څو څو ځله تکراروي، کله چې په دې وپوهېږي چې اوس يې اورېدونکي د زړه له تله خوښوي او يو ډول اثر پرې کولای شي، مخکې له دې چې انتخاب يې کړي، له شاعرانو ملګرو سره پرې مشورې کوي. په داسې انداز يې وايي، لکه څرنګه چې د شعر له لوستلو سره ښايي. ډېر زيات شعرونه يې دېکلمه کړي، چې د اختر په نامه دېکلمه شوی شعر يې ډېر زړه جذبوونکی دی. د دې شعر دېکلمې په مينه والو او اورېدونکو بېل شان اغېزه وکړه، ډېرو خلکو د يوې رښتينې صحنې ليدل انځوررول او خورا مينه يې ورسره پيدا کړه. دې ته ورته ډېر نور شعرونه يې هم په ډېر لوړ او مناسب انداز سره دېکلمه کړي، چې د هر يوه خوند يې د يو بل په پرتله زيات دی. د خلکو په زړونو کې يې ځای نيولی او د بيا اورېدو لېوالتيا يې ښيي. همدا دی چې ډېر شاعران د افغانستان جګړه له اباسين نه مشره ګڼي او بيا وايي چې:«دی په ښه طريقه کولای شي، د تېرو بدامنو وختونو انځورونه مينه والو ته په ښه شان سره وړاندې کړي، دا ورته وښيي چې دغو ناخوالو افغانان څنګه کړولي، ورسره دا هم ورته ښيي، چې څنګه کولای شو جګړو ته د پای ټکی کېږدو، سوله او ثبات را ولو». اباسين سېلاب هم فلمي ستوری دی ورسره يو تکړه ترانه ويونکی هم دی، په دې برخه کې پوره وړتيا لري؛ خو دا چې تر اوسه يې ډېرې کمې ترانې ويلې، شاعر او دېکلمه کوونکی هم دی، نه شي کولای په يو وخت کې ټول کارونه سرته ورسوي، که څه هم تقسيم اوقات به يې ورته جوړ کړی وي. خو وايي چې د چارو د زياتېدو له امله د ترانو ويلو ته لاسرسی نه شي کولای. د ځوان شاعر طاهر شرر ساپي يو ښکلې غزل يې په خپل خوږ اواز او سرور سره اورېدونکو ته وړاندې کړ.

د ترانو په هنر کې همدا سندره وه چې سېلاب يې مشهور کړ. دا غزل چې شرر صيب په کوم انداز ليکلی او څه انځور يې پکې نغښتی، سېلاب بيا اورېدونکو ته داسې روښانه کړی، چې په همغه انداز چې شاعر به غوښتل زمزمه يې کړی، چې مطلع يې داسې ده:

**ځوانې دې رانه وخوړه لونګه ځوانيمرګه**

**غنم غوندې رېبې مې رنګه بنګه ځوانيمرګه ،کله چې خلکو دا سندره واورېده په زړه کې يې د اباسين سېلاب د دې هنر د پرمختګ لپاره هيلې زياتې شوې، چې په ډېرو ترانه ويونکو کې د غوره ترانه ويونکي لقب خپل کړي. شاعران او هنر مندان يې د دې لومړي قدم په اخيستو داد ورکوي، که «دی خپل هنر ته وخت ورکړي، بې له شکه چې هنر به يې وده او پرمختګ کوي او خپلو اهدافو ته به ډېر ژر ورسېږي، هغه خوب چې يې د دې هنر په اړه ليدلی وي، تر ډېره به يې تعبير ته ورنږدې شي، حتی پوره به شي. اباسين سېلاب کابو۲۸کاله عمر لري.** موږ هيله من يو، چې دغه ځوان شاعر، هنرمند او سينماګر خپلو فرهنګي او هنري هلو ځلو ته دوام ورکړي او ناچاپ اثار يې چاپ او د فرهنګيانو په واک کې کېښودل شي.

## واصف باختری؛
# شاعر، نویسنده، مترجم و پژوهشگر

احمد

محمد شاه واصف باختری شاعر، نویسنده، مترجم، منتقد و پژوهشگر نام آشنای حوزه زبان و ادبیات پارسی، فرزند قاری محمدالله در ۲۴ حوت سال ۱۳۲۱هجری خورشیدی در محله گذر دربار شهر مزارشریف ولایت بلخ زاده شده است. وی دورهٔ ابتدائیه را در لیسهٔ باختر مزارشریف به فرجام رساند، صنوف دهم و یازدهم را در لیسهٔ حبیبیه خواند، اما سند فراغت را در سال ۱۳۴۱ از لیسه باختر شهر مزارشریف به دست آورد.واصف باختری در سال ۱۳۴۵ هجری خورشیدی از رشتهٔ زبان و ادبیات پوهنتون کابل گواهینامه لیسانس گرفته و در همان سال در دیپارتمنت دری ریاست تألیف و ترجمه وزارت معارف، کار را آغاز کرده است.

در سال ۱۳۵۳هجری خورشیدی برای تحصیلات عالی به امریکا رفت و در سال ۱۳۵۵ هجری خورشیدی پس از به‌دست‌آوردن گواهینامه ماستری در رشتهٔ تعلیم و تربیه از پوهنتون کولمبیا، به افغانستان برگشت و دوباره در ریاست تألیف و ترجمه تا سال ۱۳۵۷ به کار خود ادامه داد.

واصف باختری در میزان سال۱۳۵۷ درزمان حکومت خلقی ها ، زندانی شد و در جدی سال ۱۳۵۸ از زندان رها شد و دو باره تا سال ۱۳۶۱ به حیث ویراستار در ریاست تألیف و ترجمه وزارت معارف به کارش ادامه داد.از سال ۱۳۶۱ تا سال ۱۳۷۴در اتحادیهٔ نویسنده گان افغانستان در سمت‌های سردبیر بخش شعر، مدیر مسئول مجلهٔ ژوندون و منشی دارالانشای اتحادیهٔ نویسنده گان افغانستان کار کرد. او همچنان در طول این سال‌ها در آموزشگاه اتحادیه نویسنده‌گان افغانستان تدریس میکرد.واصف باختری سال‌ها عضو گروه دبیران بنیاد فرهنگ افغانستان، عضو گروه رهبری کانون حکیم ناصر خسرو، عضو شورای مرکزی انجمن فرهنگی خوشحال‌خان و عضو هیئت رئیسه اتحادیه ژورنالیستان افغانستان بوده است.هفت عرس مولینا جلال‌الدین محمد و شش اجلاس عمومی کانون حکیم ناصر خسرو به ریاست او برگزار شده است و بیشتر اسناد اساسی، پیام‌ها و آیین‌نامه‌های انجمن نویسند گان افغانستان را او نوشته و آیین‌نامه بسا از کانون‌های فرهنگی به وسیله او نگارش یافته‌اند.

از واصف باختری بیشتر از بیست عنوان کتاب در زمینه‌های سرایش و ترجمه شعر در اوزان کلاسیک، نیمایی و آزاد و مقالات فلسفی، پژوهشهای ادبی و فلسفی، ترجمه شعر، ترجمه مقالات فلسفی و ادبی و صدها مقاله چاپ شده است.

واصف باختری به زبان‌های انگلیسی و عربی تسلط داشت. مقاله‌ها و شعرهای فراوانی را از انگلیسی به فارسی برگردان کرده و نیز شماری از شعرها و داستان‌های پارسی را به انگلیسی ترجمه کرده است. شماری از شعرهای او به زبان‌های انگلیسی، روسی، چکی و آلمانی نیز برگردان شده‌اند.واصف باختری در غزل سرایی به ملک الشعرا بهار و در سرایش شعر نو به مهدی اخوان ثالث، پهلو میزد.واصف باختری مدتی در پاکستان و امریکا زندگی نموده و به تاریخ ۲۹بیست و نهم سرطان سال ۱۴۰۲ مطابق بیستم جولای سال ۲۰۲۳ میلادی چشم از جهان فرو بست و به دیار جاودانه‌گان شتافت.

روحش شاد باد

## د معادنو د شفاف ...

د چاپېریال ساتنې لپاره اقدامات اړین دي، چې د افغانستان د طبیعي اکوسیستم د خوندي کولو لپاره د حکومت له لوري جدي تدابیر نیول شوي دي. د معادنو د استخراج پروسه باید د طبیعي منابعو ساتنه، د ځمکې لاندې اوبو د ضایع کېدو مخنیوی او د ځمکې د بیا رغونې لپاره مناسب تدابیر ولري. د معادنو د استخراج پر مهال د چاپېریال ساتنې لپاره اقدامات اړین دي، چې د افغانستان د طبیعي اکوسیستم د خوندي کولو لپاره د حکومت له لوري جدي تدابیر نیول شوي دي.

د افغانستان د معادنو د استخراج د شفافیت په برخه کې د اسلامي امارت حکومت یو مهم ګام اخیستی دی. د اسلامی امارت له خوا د معادنو د استخراج لپاره د شفافیت اقدامات او د قوانینو وضع کول د دې لامل شوي چې په هېواد کې د معادنو د استخراج پروسه له فساد څخه پاکه شي. د دې اقداماتو په ترڅ کې، د معادنو د استخراج د پروژو لپاره له بهرنیو شرکتونو سره همکاري پیل شوې، څو د معادنو د استخراج پروسه له نړیوالو معیارونو سره سم ترسره شي. دغه اقدامات نه یوازې د هېواد د اقتصادي وضعیت لپاره ګټور دي، بلکې د معادنو د استخراج پروسې د شفافیت او قانونیت لپاره هم مهم دي. د افغانستان له معادنو څخه د ګټې اخیستنې لپاره نړیوالې همکارۍ هم اړینې دي. د اسلامي امارت حکومت د معادنو د استخراج د شفافیت او د طبیعي منابعو د ساتنې لپاره له نړیوالو سازمانونو او پرمختللو هېوادونو سره همکارۍ پیل کړې ده. د دې همکارۍ له لارې افغانستان کولی شي له خپلو طبیعي منابعو څخه د اوږدمهاله ګټې ترلاسه کولو لپاره نړیوالې تجربې او تخنیکي پوهه ترلاسه کړي.

د افغانستان د معادنو د استخراج په پروسه کې نړیواله همکاري یوازې له پرمختللو هېوادونو سره د تجارتي اړیکو د پیاوړتیا لپاره نه، بلکې د هېواد د پرمختګ لپاره هم ضروري ده. د معادنو د استخراج شفافیت او د طبیعي منابعو د ساتنې لپاره له نړیوالو سازمانونو سره همکاري نه یوازې د افغانستان لپاره ګټه لري، بلکې د نړیوالو بازارونو لپاره هم دې منابعو ته یوه قانوني او شفافه لاره پرانیزي. د معادنو د استخراج پروسې ته له نړیوالو معیارونو سره سم لاربښوونه د افغانستان لپاره د اوږدمهالو ګټو سرچینه بلل کېدلی شي.

خلاصه دا چې افغانستان د طبیعي منابعو له پلوه یو له بډایو هېوادونو څخه دی، چې معادن لکه طلا، مس، زغال، لیتیوم او نور.. د دې معادنو ټول ارزښت تر ۳ تریلیونو ډالرو پورې اټکل شوی چې د هېواد د اقتصادي پیاوړتیا لپاره یو ستر فرصت دی، خو تر اوسه پورې له دې منابعو څخه د ګټې اخیستلو پروسه بې نظمه او پر فساد ولاړه وه. د اسلامي امارت حکومت له خپل اقتدار وروسته د معادنو د استخراج او ساتنې په برخه کې جدي اقدامات پیل کړي، ترڅو د معادنو استخراج شفاف او قانوني شي.

د اسلامي امارت حکومت د معادنو استخراج د شفافیت، د فساد مخنیوي او د چاپېریال ساتنې لپاره جدي ګامونه اخیستي دي. د معادنو د استخراج لپاره د نړیوالو معیارونو پلي کول او د قوانینو پوره پلي کول د دې حکومت له مهمو هڅو څخه دي. دغه اقدامات د افغانستان د اقتصادي وضعیت د پیاوړتیا او د طبیعي شتمنیو د ساتنې لپاره ضروري دي.

په تېر حکومت کې د معادنو استخراج د فساد، غیر قانوني شبکو له لارې ترسره کېده، چې د هېواد طبیعي منابعو ته زیان رسېدلی و. د اسلامي امارت حکومت د دې ستونزو د حل لپاره کار کوي او هڅه کوي چې د معادنو استخراج له نړیوالو معیارونو سره سم ترسره شي. دا نه یوازې د اقتصادي پرمختګ سبب ګرځي، بلکې د چاپېریال ساتنې او د طبیعي اکوسیستم د خوندي کولو لپاره هم ضروري دي. په پایله کې، د معادنو استخراج د شفافیت او قانوني پروسې له لارې د افغانستان د اقتصادي وضعیت پیاوړتیا، د طبیعي منابعو د ساتنې او د نړیوالو بازارونو لپاره د هېواد د ونډې زیاتولو سبب ګرځي.

## د افغانستان خلکو...

پرېږدي ،څو نورې خبرې یې هم وکړې او را ولاړشو. د داود خان دې سفر ډېر ترخه عواقب درلودل، شوروي، چې پخوا د داودخان د چپه کولو کوم پلان درلوده هغه یې سمدستي تر لاس لاندې ونیو، دې ټکر شوروي قانع کړ چې داودخان د شوروي په کړۍ کې ځان نه مقیدوي.

۷- د ۱۹۷۹م په فبرورۍ کې د ایران پاچاهي نظام ختمېدل او پر ځای یې مذهبي دولت جوړېدل: کله چې د ایت الله خمیني په مشرۍ په ایران کې د اخندانو دولت منځ ته راغی، روسیې ته په سیاسي سطحه وېره پیدا شوه. څنګه، چې مذهبي عناصر د کمونېزم ضد بلل کېدل ،نو د ایران مذهبي دولت روسیه اندېښمنه کړه او روسیې غوښتل، چې د افغانستان له لارې فارس خلیج ته ځان ورسوي. هغه هیلې یې هم ټکنۍ شوې، نو ځکه یې افغانستان په نظر کې ونیو، چې باید تر ولکې لاندې راشي، خو کله چې په ایران کې امریکایي کوماندویان ونیول شول، روسیې ته تشویش پیدا شو ،چې امریکا پر ایران حمله ونه کړي ،نو ځکه یې پر افغانستان د یرغل پر سناریو چټکي وکړه.

د روسانو ظلم او بربریت:

د ثور د اوومې له کودتا وروسته د افغانستان پر افق د ظلم او وحشت ورېځې را خپرې شوې، د کمونستانو د رژیم د امنیت اداري چې په اول وخت کې یې مشري اسدالله سروري کوله په زرګونو بېګناه انسانان ژوندي تر خاورو لاندې کړل او داسې ظلمونه یې وکړل، چې افغانانو یې مخکې کله تصور هم نه و کړی.

د ۱۳۵۸ ل کال د جدي په شپږمه روسانو مستقیماً پر افغانستان یرغل وکړ او کارمل یې د شاه شجاع په څېر پر ټانک سپور ورسره راوست او د کابل پر تخت یې کېناوه، نو د ظلم، بربریت او وحشت بازار نور هم ګرم شو.

د شوروي اتحاد د ماتې عوامل:

پر افغانستان د سره پوځ یرغل دومره درنه حادثه وه، چې افغانستان او ټوله نړۍ یې له یو سره تر بله په حرکت راوستله او شوروي اتحاد د یو ابر قدرت په توګه د مقابل ابر قدرت امریکا له خوا داسې یوې ضربې ته مخامخ شو ،چې په پای کې یې امپراتوري دړې وړې شوه. دشوروي اتحاد د ماتې عوامل په لنډه توګه بیانوو.

۱-د افغانستان خلکو چې هېڅکله یې د پردیو تېری او اشغال نه دی زغملی د روسانو په مقابل کې یې پر مسلحانه جهاد لاس پورې کړ، چې لوېدیځې نړۍ ته د روس د را پرځولو ښه موقع په لاس ورغله. د افغانستان له مجاهدینو سره یې مرستې پیل کړې .آخر روسان د افغانانو دمقاومت او د نړیوالو د فشار له امله د ا فغانستان پرېښودو ته اړ شول.

۲- په روسیه کې اقتصادي او سیاسي بحران ،چې روسیې د غرب پر ضد خپل نفت او نور صادراتي توکي پر شرقي هیوادونو په ارزانه بیه پلورل، چې په پایله کې یې اقتصاد کمزوری شو. همدارنګه د ګرباچوف په وخت کې د روسیې په داخل کې سیاسي مخالفتونه زیات شول.

۳- د ملګرو ملتونو او نړیوالو فشار، چې شوروي باید خپل عسکر له افغانستانه وباسي، د امریکا او ځینو نورو غربي هیوادونو له خوا د ترونونو د لاسلیک ځنډول.

۴- د مجاهدینو ټینګ مقاومت او له دوی سره د نړیوالو او اسلامي هیوادو مرستې، چې کمونیزم یې له ماتې سره مخ کړ.

۵- د کارمل بې کفایته اداره د کمونېستانو او روسانو نه زغمونکي ظلمونه، چې د افغانستان ټول قامونه یې پر ضد را پورته شول او د دوی په خپل منځ کې اختلافات د دې سبب شول، چې کمونیستي اداره له سقوط سره مخ شي.

۶- په هیواد کې روزل شوي مجاهدین را میدان ته شول او په چریکي جنګونو کې یې د روسانو او کارمل حوصلې ور تنګې کړې.

روسانو د ۱۳۵۸هـ لمریز کال د جدي پر شپږمه پر افغانستان نظامي یرغل وکړ، چې ((۹)) کاله او ((۵۳)) ورځې په افغانستان کې پاتې شول او په ۱۳۶۷هـ لمریز کال د دلوې په ((۲۶)) مه له افغانستانه ووتل.

د شوروي د یرغلګر پوځ شمېر د روسانو له خولې ((۱۱۵ ۰۰۰)) ښودل شوی. د غربیانو له قوله ((۱۵۰۰۰۰)) اټکل شوی، خو مجاهدینو بیا دا شمېره ((۲۰۰۰۰۰)) ښودلې ده. د شوروي پوځ د وژل شویو عسکرو شمېره ټولټال ((۱۴۴۵۳)) تنه ښودل شوې، چې ((۹۵۰۰)) یې په جنګ کې وژل شوي ((۴۰۰۰)) د زخمونو له امله مړه شوي او((۱۰۰۰)) تنه د بیمارۍ په سبب مړه شوي او د زخمیانو شمېر یې ((۵۳۷۵۳)) تنه ښودل شوی او ((۳۱۲))تنه یې ورک شوي دي، همدا راز یې ((۱۰۰)) تنه ملکیان هم وژل شوي دي.

د کمونیست رژیم وژل شوي عسکر ((۱۸۰۰۰)) تنه دي، د شوروي په مقابل کې له ((۷۵۰۰۰)) تر ((۹۰۰۰۰)) پورې مجاهدین شهیدان شوي دي.

او د ملکي تلفاتو شمېره چې احتمالي ارقام یې ښودل شوي له شپږ لکه تر دوه میلیونه پورې دي او تقریباً درې میلیونه زخمیان شوي دي، پنځه میلیونه له افغانستانه بهر ته مهاجر شوي دي او دوه میلیونه په داخل کې په زور هجرت ته اړ شوي دي.

اخځلیکونه:

۱-تاریخ و روزنامه نګاری افغانستان، دکتور محمد حلیم تنویر، چاپ، انتشارات انستیتوت تحقیقات وبازسازی افغانستان کابل، چاپ کال، ۱۳۸۳ل.

۲-د افغانستان پر معاصر تاریخ لنډه کتنه، کاندید اکاډمېسن محمد ابراهیم عطایي، چاپ، میوند خپرندویه ټولنه- سبا کتابخانه کابل، چاپ کال، ۱۳۸۹.

۳-اردو وسیاست در سه دهه اخیر افغانستان، نبي عظیمي، چاپ، بنګا انتشارات میوند، سبا کتابخانه کابل ، چاپ کال،۱۳۸۵هـ ل.

۴-په افغانستان کې رښتیا څه تېرېدل، الکساندر مایوروپ، ژباړه، ډاکټر داود جنبش، چاپ، انتشارات رسالت، چاپ کال، ۱۳۸۴هـ ل.

۵-پر اسلامي نړۍ یرغل، م-فاروق صافی، چاپ، پېښور، خیبر پښتونخوا، چاپ کال، ۲۰۱۰م

-د کابل شپې، جنرال عمرزی، پښتو ژباړه، سید عبدالله پاچا، چاپ، میوند خپرندویه ټولنه- سبا کتابخانه کابل، چاپ کال، ۱۳۸۴هـ ل.

۷-ګوګل، جنګ شوروي در افغانستان، ویکیپیدیا.

## ۲٦ دلو برابر ...

نظام اسلامی استقرار یافت، صلح و آرامش سراسری در تمامی جغرافیای افغانستان تامین شد ،بی عدالتی، فساد ،دزدی و غارت اموال مردم خاتمه یافت و نظام ناب اسلامی رویکارآمد و مردم افغانستان در فضای صلح و امن زندگی خویش را بدون تشویش ادامه دادند.خروج نظامی اتحاد شوروی وقت از سرزمین افغانستان یک پیروزی عظیم نظامی،سیاسی و یک خاطره فوق العاده تابناک و فراموش ناشدنی برای ملت مجاهد افغانستان پنداشته می شود.تجلیل و یادآوری از همچو روزهای ملی و حماسه آفرین،علاوه براینکه روحیه وطندوستی را در میان جوانان ما تقویت و بیشتر می کند،همبستگی و اتحاد میان مردمان این سرزمین را نیز استحکام می بخشد.

بلی!تاریخ اثبات نموده هر کشوری که دست دوستی به افغانستان دراز کرده ولی از عقب خنجر زده و داعیه اشغال و تجاوز به سر می پروراند،باید از تجاوز اتحاد جماهیر شوروی وقت و امریکا در افغانستان که چه گونه با افتضاح همراه بود وچگونه فروپاشیدند،درس عبرت بگیرند و چشم طمع از این کشور بپوشانند.

## ۲٦ دلو سال ۱۳٦۷ نقطه...

در افغانستان داغتر می شد وتلفات سنگینی بر قوای روس ها وخلقی ها وارد می گردید وبه این ترتیب این جنگ نا برابر ده سال تمام دوام نمود ودر طی این مدت صدها هزار مسلمان شهید گردید ومیلیون ها نفر به کشور های همسایه پناهنده شدند وتلفات زیادی بر نیروهای خارجی وداخلی دشمن وارد گردید وشیرازه حکومت خلقی ها و پرچمي ها که داکتر نجیب رهبری آنرا به دوش داشت از هم پاشید وزمامداران کرملین دریافتند که وعده های رهبران خلق وپرچم مبنی براینکه مردم افغانستان از انقلاب آنها پشتیبانی همه جانبه خواهند نمود دروغ وبی اساس بوده است ودرک کردند که ایشان شکار حرف های دروغین آنها شده اند ، ازین رو ماندن خود در افغانستان را با این پیمانه از خسارات بزرگ جانی ومالی مصلحت ندیده وبه بیرون شدن قوای خود از افغانستان تصمیم گرفتند ، همان بود که آخرین قوای روس در ۲٦ دلو سال ۱۳٦۷ از طریق بندر حیرتان افغانستان را ترک گفت وازآن به بعد این رویداد منحیث بزرگترین ومهمترین حادثه قرن در تاریخ جهان ثبت گردید ومردم شجاع ودلیر افغانستان یکبار دیگر تاریخ را باقهرمانی ها وفداکاری های خود رقم زدند .به این انگیزه ومرام ، مردم شریف وآزاده افغانستان این روز را منحیث بزرگترین نماد قهرمانی وشجاعت خود هرسال جشن میگیرند وخاطره های مملو از شهامت وقربانی شهدای شان را زنده نگهمیدارند، به امید سرفرازی وشاد کامی هرچه بیشتر ملت مظلوم وبیچاره افغانستان.

## افغانانو نړۍ د شوروي...

شوروي دیکتاتورانو دافغانانو تاریخ نه ولوستلی چې هغوی سکندرهم په کونړ او کاپیساکې داسې راګیر کړی و،چې دتېښتې لاره یې هم نه درلوده ، کوروش او داریوش یې هم ځغلولي وو، چنګیز او تیمور یې هم ډبولي وو، له ګرګین څخه یې شغال جوړ کړی و، همدا راز انګریزیې هم دري ځله په منډوکړي و، شورویانو دغه باتور ټاټوبي ته په ټیټه سترګه کتلي و. یو شاعر څومره ښه ویلي دي:

ټیټ مې مه بوله غورځنګ راباندې
مه کړه
زه په دې افتادګۍ کې لوی ګړنګ
یم

د شوروي اتحاد وروستي دیکتاتور درک کړه چې افغانستان نشي نیولی، نو پښې یې سپکې کړې او وروستي شوروي عسکر چې د آمو له سینده پوریوت په حیرت او افسوس یې افغانستان ته راوکتل او غټې غټې دافسوس اوښکې یې له سترګو وڅڅېدې ، ځکه چې په افغانستان کې د مجاهدینو په لاس ډېر شوروي عسکر مردار او دکارغانو ، مرغانو ، سپیو او لېوانو خوراک شول .

د شورویانو ماغزه نهه کاله وروسته ایله ځای ته ورغلل اوله افغانستانه یې پښې سپکې کړې، خو دجنیوا پرتړون یې عمل ونه کړ او دنجیب له کمونیست رژیم سره یې هرډول مرسته کوله. دصلیبي ښکېلاکګرو تر راتګه پورې یې له خپلو ګوډاګیانو سره کومک جاري و، دملت قاتل دوستم ته یې هم افغانۍ چاپولې او دربانې د شړېدلې اداري لپاره یې هم دخپلې سخا دروازې پرانیستي وې، ځکه خو دافغانۍ ارزښت هم له منځه تللی و، همداشان شوروي ښکېلاک زموږ هرڅه تباه کړل، له جومات اومدرسې نیولې آن ترهدېرو پورې یې هرڅه له منځه یوړل، زموږ پردود ، دستور ، عنعناتو او کلتور یې ستره اغېزه وکړه.

شورویان د دلوې په (۲٦) مه نېټه زموږ له هیواده ووتل، خو د دوی حماقت او ګوډاګیان په افغانستان کې پاتې شول اماګوډاګیان یې ډېر بې وفا وو، د لینین او ستالین هغه شعار چې د نړیوال سرېخور امپریالیزم ( امریکا او ناټو والو) خلاف به یې ورکاوه هغه یې هېر کړ او دصلیبیانو ملاتړ یې وکړ، دکمونیست نظام ډېر پخواني چارواکي هېواد ته راغلل او له هغوي سره یې مرسته اوهمکاري وکړه!!

د نړۍ ډېرهېوادونه او ولسونه باید له افغانانو مننه وکړي ،ځکه د شورویانو په ځپلو او ځغلولو سره یې دکمونیزم له اسارت اوغلامۍ څخه وژغورل او د استقلال او خپلواکۍ خاوندان یې کړل .



# ننگرهار کې د زده کوونکو په لاس د جوړو شویو توکو ۳ ورځنی نندارتون پیل شو

په ننگرهار کې د پوهنې ریاست تر چتر لاندې د یو خصوصي ښوونځي د زده کوونکو په لاس د جوړ و شویو توکو درې ورځنی نندارتون پیل شو. مسئولین وایي، د دې نندارتون موخه د نوښتگرو زده کوونکو هڅونه، ملاتړ او د دوي استعدادونو ته وده ورکول دي. د نندارتون تنظیموونکي احمد طارق کمال وایي: (( زده کوونکي باید وهڅوو نوښتونو او تحقیق ته، ترڅو موږ وکولی شو چې یوه ټولنه ولرو چې هغه پر تحقیق استواره وي. ان شاءالله په راتلونکي کې لکه څنگه چې نورو ټولنو له ساینسه گټه اخیستې ده او پرمختگ یې په برخه شوی دی، زموږ افغانستان هم په دغې برخه کې لاسته راوړنې ولري.)) په دې نندارتون کې زده کوونکو د روان ښوونیز کال په جریان کې په لاس جوړ شوي توکي نندارې ته وړاندې کړل.دوي د ورته نورو نندارتونونو جوړېدو ته هیله من دی،، چې له امله به یې په راتلونکي کې لا ښه نوښتونه وکړي.زده کوونکی سمیع الله وایي: (( که نن مو یو عادي شي جوړ کړ، موږ کولی شو سبا له دې یوه مفکوره واخلو.))یو بل زده کوونکي مصطفي بیا وایي: (( زموږ ښوونځي کې چې نن دا کوم نندارتون دی، دا ډېر مهم دی. موږ غواړو چې په نورو ښوونځیو کې هم دا شان ناستې ترسره شي، ترڅو د زده کوونکو استعداد په کې معلوم شي.))د ننگرهار د پوهنې ریاست مسئولین وایي: د ټولو هغو زده کوونکو مادي او معنوی ملاتړ ته ژمن دي چې پر نوښتونو کار کوي.د ننگرهار د پوهنې رئیس محمد شریف حلیمي وایي: (( موږ ستاسو ترڅنگ ولاړ یو، دا ډاډ بیا بیا درکوم چې کومې اړتیاوې مو وي او زموږ په وس پوره وي، ان شاء الله تر امیرالمؤمنین پورې به زه ستاسو خبره رسوم. ))د ښوونیزې برخې استادان سپارښتنه کوي ،چې ښوونځیو کې دې پر تیورۍ سربېره زده کوونکو ته دغه ډول نندارتونونه ډېر کړي چې د زده کړې له پیله نوښتونه وکړي.

---

### آزادي نعمت او ...

باید ښوونیزو نصابونو کې دغو مضامینو ته ډېر ځای ورکړل شي او د ملت مسئولیت دا دی، چې د موجود اسلامي نظام کلک ملاتړ وکړي، د قانون په تطبیق، د جرمونو مخنیوي، د امنیت تامین او د ټولگټو پروژو ساتلو کې امنیتي ځواکونو سره اوږه پر اوږه ودرېږي.

لوېدیځه نړۍ او ځینې نور هېوادونه به خامخا د خپلو سیاسي او اقتصادي گټو او دغه راز له افغان ملت څخه د خپلې ماتې د کسات اخیستو په پار یو ځل بیا د افغانستان د نا امنه کولو هڅې کوي؛ خو موږ ټول افغانان باید د قوم، سمت، ژبې او گوند له توپیرونو پرته د هېواد د آزادۍ ساتلو او دغه راز د هېواد د ځان بسیاینې لپاره په گډه هڅې او کوښښونه وکړو.

لنډه دا چې موږ باید یوازې له انگرېزانو، شوروي اتحاد او ناټو څخه د خپلواکۍ اخیستو د ورځو په لمانځلو بسنه ونه کړو، بلکې د هېواد د آزادۍ او خپلواکۍ ساتلو او پاللو لپاره عملي گامونه پورته کړو. په سیاسي ، اقتصادي او فرهنگي برخو کې د نورو اغېزو او اثر ته اجازه ورنه کړو، د خپل هېواد د ځان بسیاینې او پرمختگ لپاره په هماغې کچه هڅې وکړو، لکه د خپلواکۍ اخیستو لپاره مو چې کولې.

### د خیرخواه سوداگریز ...

سپارل یې په هېواد کې د سوداگرۍ او پانگونې د ودې او پراختیا لپاره مهم گام وباله. مولوي عبدالسلام حنفي ویلي؛ دا یو روښانه حقیقت دي چې د یو هېواد پراختیا او پرمختگ په هغه هېواد کې سوداگریزې ودې او د خصوصي سکتور ملاتړ پورې اړه لري، له دې امله اسلامي امارت کوښښ کوي چې اقتصاد، سوداگري او په ځانگړې توگه خصوصي سکتور په واقعي مانا وده وکړي او د دې برنامو یوه نمونه له خصوصي سکتور سره د نوي خیرخواه سوداگریز مارکېټ ترون دي چې په یوه ډېره عالي فضا کې یې سوداگرو او دوکاندارانو ته د ښه فعالیت زمینه برابره کړه او نن یې ټول د پرانیستو شاهدان یو.د ریاست الوزراء اداري مرستیال زیاته کړې، د نوي خیرخواه سوداگریز مرکز ترون لومړنۍ او لویه پروژه ده، چې د فتحې په لومړیو ورځو کې د عامه او خصوصي مشارکت له لارې وشو، چې د افغانستان اسلامي امارت اقتصاد محوره برنامو باندې د خصوصي سکتور د باور مهمه نمونه، له خصوصي سکتور څخه د اسلامي امارت د ملاتړ روښانه بېلگه او هېوادوالو ته د کار او سوداگرۍ د رونق او ځلېدو زمینې برابرول دي. د ویلو وړ ده چې د نوي خیرخواه سوداگریز مارکېټ مجموعي مساحت ۹۳۶۱ متره مربع او ۹ منزلونه چې دوه منزله یې د وسایطو پارکینگ دي، جوړ شوي دي.د دې پروژې په جوړولو ۳۴ میلیونه ډالره لگېدلي چې دا لگښت سن‌اسکای گلوبل شرکت او د مارکېټونو د اورلگېدنې متضررینو ورکړي دي او د کرایو له بابته له مجموع عوایدو څخه ۳۰ سلنه اماراتي ادارو او ۷۰ سلنه متضررینو او پانگوالو ته د ورکړې وړ ده.د یادونې وړ ده، په دې ملي پروژه کې ۱۳۰۰ دوکانونه اساسي او په عصري سیستمونو سنبال جوړ شوي، چې زرگونو کسانو ته یې په مستقیم او غیر مستقیم ډول د کار زمینه برابره کړې او همدارنگه هغو ټولو کسانو ته چې د دې مارکېټ د اورلگېدنې پېښه کې زیانمن شوي وو، دوکانونه وېشل شوي دي.

### میدانوردگو کې ...

دیوالونه، د لمریزې برښنا سیستم برابرول، د څښاک د پاکو اوبو سیستم، عصري تشنابونه جوړول او همدارنگه د ودانیو رنگول شامل دي.هېره دې نه وي چې له دې وړاندې هم د ملگرو ملتونو د ماشومانو د ملاتړ صندوق(UNICEF) له لوري ورته ښوونځي بیارغول شوي دي.

### د قیصار – لامان حلقوي ...

د حق‌شناس په وینا: د یاد حلقوي سړک د لومړۍ او دویمې برخې چې ۳۴ او ۴۸ کیلومتره اوږدوالي لري؛ د تېرې اداري پرمهال یې د رغولو تړون شوي و، چې اوسمهال یې کار متوقف دي؛ خو د ټولگټو وزارت یې د چارو د بیا پیل پلان لري.هېره دې نه وي چې د قیصار – لامان حلقوي سړک د دوو نورو (دریېمې او څلورمې) برخو چې ۵۰ او ۴۰ کیلومتره اوږدوالي لري؛ د سروې او ډیزاین چارې بشپړې شوي او د بودجې په تخصیص سره به یې د رغولو چارې پیل شي.

### بهر ته د افغانستان ...

د ساتنې لپاره د لا معیاري سړو خونو په جوړولو او مناسب بازار ټینگار کوي.د اقتصادي کارپوهانو په باور، افغانستان یو کرنیز هېواد دي او ډېر اقتصادي توکي یې کرنیز محصولات دي.دوي وایي، چې دولت دې د خصوصي سکټور په همکارۍ د معیاري سړو خونو په جوړولو او د محصولاتو د پلور لپاره د بازار موندنې په برخه کې لا زیاتې هڅې وکړي.د کرنې او مالداري خونې د مسئولینو په وینا؛ د قوشتیپې کانال د چارو په بشپړېدو او د اوبو په مدیریت سره به افغانستان د کرنیزو محصولاتو له اړخه پر ځان بسیا شي. دغه‌راز افغانان به نور اړ نه وي، چې کرنیز محصولات په ځانگړې ډول غنم له بهر څخه وارد کړي.

### پکتیا کې ۲۷۰ پراختیایي...

چې په کې استنادي دېوالونه، پلونه، پلچکونه او سړکونه شامل دي.همدا راز د پوهنې رئیس مولوي عبدالقیوم فاروقي وویل ،چې د ۲۹۶ میلیونه افغانیو په لگښت ۴۸ پروژې پلې شوې، ۱۷ ښوونځي او ۲ مدرسې د ۱۰.۳ میلیونه افغانیو په لگښت جوړې او بیارغول شوي دي.د کرنې، اوبو لگولو او مالدارۍ رئیس مولوي سید امین هاشمي وویل ،چې په ۱۴۰۳ کال کې ۲۱۵ شنې خونې جوړې شوې، ۶۴ کسانو ته بڼونه جوړ شوي او ۲۰ زره ۵۶۰ بزگرانو ته اصلاح شوي تخمونه وېشل شوي دي.په پای کې د ټولو ادارو مسئولینو خپل کلنۍ راپور او لاسته راوړنې وړاندې او چارواکو ډاډ ورکړ چې په راتلونکي کال کې به د اړتیا وړ پروژې پلې او نیمگړې پروژې به بشپړې شي.

### لوگر کې ۱۳ سوداگریز ...

پیل شي.نوموړي همدارنگه زیاته کړه، په پام کې ده چې د کور او ښار جوړونې وزارت له لوري د لوگر ولایت په پاتې ولسوالیو کې هم د هیوادوالو د اړتیا له مخې د کور او ښار جوړولو وزارت د طرحې له مخې معیاري بازارونه جوړ شي.هېره دې نه وي چې اوس مهال د لوگر ولایت په مرکز پل علم او ولسوالیو کې شته بازارونه غیر معیاري جوړ شوي دي او عام خلک یې د معیاري بازارونو د جوړېدو غوښتنه کوي.

### ۴ولایتونو کې ...

د هیواد په ۲۵ ولایتونو کې شاوخوا ۴۶۸ زره ۵۹۸ جریبه ځمکه تثبیت شوې ده.په خبرپاڼه کې ویل شوي، ”د غصب شویو ځمکو د بېرته راگرځولو تخنیکي ټیم همداراز د دې میاشتې په جریان کې د افغانستان په ۲۵ ولایتونو کې شاوخوا څلور سوه اته شپیته زره پنځه سوه او اته نوي (۴۶۸،۵۹۸) جریبه دولتي ځمکه هم تثبیت کړې او همدارنگه یې په ۳۲ ولایتونو کې له یو میلیون او درې زره پنځه دیرش (۱۰۰،۳۰۳۵) جریبه څخه ډېرې نورې ځمکې سروې کړې دي.د وزارت په وینا، د امارتي ځمکو د بیاکتنې، تثبیت او بیرته راگرځولو پروسه په ټولو ولایتونو کې روانه ده او د زرگونو جریبه غصب شویو دولتي ځمکو قضیې د ځمکو د غصب د مخنیوي کمیسیون او په ولایتونو کې د هغه د پلاوي له خوا تر څېړنې لاندې دي.

### اسلامي امارت د ولسي ...

او د سوکاله ژوند د زمینې برابرولو لپاره هڅې کوي. همدارنگه مولوي عبدالکبیر قومي مشرانو او علماوو ته ډاډ ورکړی، چې د یادو شویو ستونزو د حل لپاره به اقدامات وشي.

### د غزې په اړه د ټرمپ ...

بې‌ځایه کېدو مخنیوی وکړي. نوموړي ویلي، چې د غزې بیارغونه باید د اوسېدونکو له ایستلو پرته ترسره شي.

په ورته وخت کې، د فرانسې ولسمشر امانوئل ماکرون، د سوریې د انتقالي حکومت مشر احمد الشرع، د اردن او مصر د بهرنیو چارو وزیرانو، د لبنان لومړي وزیر، ملگرو ملتونو او گڼو نورو هېوادونو او نړیوالو سازمانونو د ټرمپ دا طرحه غندلې او نه پلې کېدونکې یې بللې ده.

شمالي کوریا هم د دې طرحې کلک مخالفت کړی او مشر یې کیم جونگ اون ویلي، چې دا طرحه د غزې د غلا په مانا ده او د فلسطینیانو ایستل به د سیمې امنیت ته جدي زیان ورسوي.

### یوه میاشت کې د هیواد ...

له لوري د روان (۱۴۰۳هـ.ل) کال د مرغومي په میاشت کې په گمرکونو کې د ترسره شویو فعالیتونو ټولیز راپور وړاندې شو.په یاده موده کې د عوایدو د راټولېدو، د هېواد په گمرکونو کې د ترسره شوې سوداگرۍ، د وارداتي توکو د گمرکي ارزښت او د سوداگریزو محمولو د شمېر او ثبت شوي وزن په اړه بشپړ معلومات وړاندې شول، چې له مخې یې د تېر کال د همدې مودې په پرتله، د گمرکونو چارې ۱۵،۷ سلنه مثبتې وښودل شوې.د وړاندې شوي راپور په تړاو هر اړخیز تخنیکي بحثونه وشول او د چارو د لا پرمختگ په موخه د ولایتي گمرکونو د مسؤلینو ستونزې او وړاندیزونه واورېدل شول، چې د رهبرۍ له لوري د ستونزو د حل ډاډ ورکړ شو او ورسره اړینې سپارښتنې هم شریکې شوې.

### له هرات څخه د تېرکال ...

چې په دې ولایت کې ۱۲ زره او ۶۳۰ هکتاره ځمکه د پستې تر کرکېلې لاندې ده.

نوموړي زیاته کړې، چې دا مهال ۶۰۰ هکتاره د پستې بڼونه په هرات کې شته او د پراختیا په حال کې دي.بله خوا د هرات والي شیخ مولانا اسلام جار د روان کال لپاره د پستې، بادامو او غوزانو بڼونو د پراختیا خبر ورکړې دي.د هغه په وینا، د دې پروژې موخه د اقلیمي کډوالۍ مخنیوي او خلکو ته د کاري زمینو برابرول دي.شیخ اسلام جار زیاته کړې، چې سیمه‌ییزه اداره به په کشک رباط سنگې، کشک کهنه، شینډنډ، ادرسکن او نورو غرنیو سیمو کې د پستې نیالگې کېنوي.

د یادونې وړ ده، چې د للمي پستې ځنگلونه یوازې په کشک کهنه او رباط سنگې کې شته، خو په نورو سیمو کې د پستې کرکیله اوبه لرونکو بڼونو ته اړول شوې ده.

### له فراه څخه د ۹۰۰ زرو ...

بهرنیو هېوادونو ته سرب، غالۍ، مېوې او سابه صادرکړې دي.نوموړي زیاته کړه، چې د تېرې اداري په پرتله اوس د صادراتو په برخه کې د پام وړ اسانتیاوې رامنځته شوي او د غالیو، سبو، وچې او تازه مېوې صادرات ترارمنستان، عراق او متحده عربي اماراتو پورې رسېدلي دي.رحماني همدارنگه زیاته کړې، چې د عالیقدر امیرالمؤمنین (حفظه الله ) د فرمان له مخې پرته له کانونو د صادراتي توکو مالیات معاف شوي دي.د یادونې وړ ده، که چېرته د فراه ولایت د شیخ ابونصر فراهي بندر لویه لاره په اساسي توگه ورغول شي، نو بهرنیو هېوادونو ته به د صادراتو کچه نوره هم لوړه شي.

### د ننگرهار د ترافیکو ...

او لایسنسونو د وېش له درکه راټول کړي او د دولت خزانې ته یې سپارلي دي.دغه راز مبارز زیاته کړې، چې یاد مدیریت د ترافیکي نظم د ښه والي لپاره په بېلابېلو واټونو کې سیگنالونه نصب کړي او په ټولو څلور لارو کې یې د ۴۰ زره متره مربع په اندازه ترافیکي لیکې جوړې کړې دي.د یادونې وړ ده، یاد مدیریت هڅه کوي، چې په ننگرهار ولایت کې د ترافیکي قوانینو اړوندې ټولې چارې په مسلکي او ښه توگه تنظیم کړي.

### بدخشان کې د یوه ...

د کرنیزو اوبولگولو د نوي کانال د پاکولو او جوړولو پروژه پلې کېږي.

نوموړي زیاته کړه، چې د یادې پروژې موخه د شاوخوا ۱۴۰۰ هکتاره کرنیزو ځمکو لپاره د اوبو برابرول دي.د یادونې وړ ده، چې د یادې پروژې په پلي کېدو سره به ۳۴۴ کسانو ته د کار زمینه هم برابره شي.

### په افغانستان کې ...

بېرته د خلق او پرچم په دوو جناحو وویشل اود پرچم جناح غړي یې د سفیرانو په توگه د نړۍ په هېوادونو کې تیت او پرک کړل، خو ډېر ژر یې د خپل دویم پلان د تطبیق لپاره په ماسکوکې د ببرک کارمل په شاوخوا سره را ټول اوپه منافقانه ډول یې د دوی اوښکې ورپاکې او حفیظ الله امین یې دCIA ISI “ دغړي او جاسوس په توگه معرفي کړ، د ۱۳۵۸کال د جدی په شپږم ماښام یې د خپل ستراتیژیک پلان دویمه برخه پرافغانستان د مستقیم یرغل په بڼه سر ته ورسوله، پر افغانستان د شوروي د سره پوځ یرغل دومره درنده حادثه وه چې د افغانستان په شمول ټوله نړۍ یې ولړزوله اوپه حرکت یې را وسته، ځکه د سترگو په رپ کې د سلو زرو په شاوخوا کې نابلډ او ناولده روسان سره له وسلو او مهماتو افغانستان ته داخل شول، د کابل ، شینډنډ اوبگرام هوایي ډگرونه یې په خپل کنټرول کې ونیول، خو د نړۍ او خصوصاً د ملگرو ملتونو له ډېر تند غبرگون سره مخ شول ، لس ورځې له یرغله وروسته د آمریکا جمهور رییس جیمي کارتر د سالت ۳ (د اتومي تسلیحاتو د کنټرول) د تړون د ځنډېدو امر ورکړ،خو سره له دې د افغانانو د څه د پاسه ۹ کاله مقاومت په ترخ کې روسان له داسې شرمېدلې ماتې سره مخ شول چې ټولې نړۍ یې ننداره وکړه. که څه هم په میلیونو افغانان په شهادت ورسېدل اوپه ملیونو نور یې د نړۍ مختلفو هېوادونو ته کډوال شول، خو روسان بیا هم خپلو اصلي موخو ته ، چې د هند تودو اوبو ته رسېدل و، ونه رسېدل او لاس ترپښو اوږده له افغانستان څخه ووتل.

### پر افغانستان د روسانو ...

پښیدل چې د پرچم جناح به خلقیان په عملیاتو کې د شا له خوا ویشتل، ځکه دا د روسانو هم خوښه وه چې خلقیان له منځه ولاړشي .

له ۹ کاله اوپنځوس ورځو وروسته د( ۱۴۰۰۰) انساني تلفاتو (۲۷۰۰۰ ) ټپیانواومعلولینو ۲۰۰ تري تمو اوله میلیاردونو مالي خسارې سره د ۱۹۸۹ میلادي کال د فبرورۍ په پنځلسمه نیټه په ۱۱بجو او پنځه پنځوسو دقیقو په داسې حال کې چې د شل کلن روسي عسکر (ایگورلیا خوویچ ) تابوت چې یوه ورځ د مخه په افغانستان کې د شوروي د وروستي قرباني شوي عسکر په توگه د ټانک په بدنه ایښی و، د جنرال گروموف په مشرۍ د افغان شوروي د دوستۍ (!) د پله له لارې له افغانستان څخه لاس ترپښو اوږده ازبیکستان ته پورېوتل او په دې توگه زموږ د هېواد اشغال پای ته ورسېد.

# Hewad Daily

پنجشنبه د شعبان المعظم ۱۴مه ۱۴۴۶ق کال | د سلواغې ۲۵ مه ۱۴۰۳ ل کال | د 2025م کال د فبروري ۱۳ مه

دورځپاڼو رئيس : انجنير عُزير «بريالی»
موبايل : ۰۲۰۲۵۲۶۳۴۰
آمر او مسئول مدير : عطاء الله مبارز
موبايل: ۰۷۷۴۳۱۸۹۰۲
مسئول سکرتر: شېرمحمدنظري
موبايل: ۰۷۸۸۵۰۳۳۷۱



پته: اتمه ناحيه، د المپيک څلورلارې، د حضوري چمن ختيځ، کابل - افغانستان
دارېکو شمېره: س۰۲۵۲۶۳۴۰ - ۰۲۰
E-mail :info@hewaddaily.com
E-mail : hewad1948@gmail.com
دهيوادورځپاڼې انټرنېټي پاڼې دلاندې ويب سايټ له لارې هم کتلی شئ
ويب سايټ: www.hewaddaily.com
دشکاياتو اوتوزيع څانګه:
۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹-۰۷۶۶۰۴۴۹۶۶-۰۷۳۶۰۶۰۷۳


## مولوي عبدالکبير:
# اسلامي امارت د ولسي اړيکو پياوړتيا ته ځانګړې پاملرنه لري

د کډوالو او بېرته راستنېدونکو چارو وزير مولوي عبدالکبير په جلا جلا غونډو کې د خوست، پکتيا او لغمان ولايتونو له يو شمېر علماوو، قومي مشرانو او مسئولينو سره ليدنه کړې.په دغو ليدنو کې د يادو ولايتونو استازو د خپلو سيمو د عمومي وضعيت، امنيتي او ټولنيزو چارو او د ولسي همکاريو پر بېلا بېلو اړخونو خبرې کړي او خپلې ستونزې يې ورسره شريکې کړې دي.يادو مسئولينو ويلي، تېر ۲۰ کلن جهاد يو دروند مزل و، خو افغان مجاهد ولس د الله تعالی په مرسته په برياليتوب سره ترسره کړ او اوس د خپل ولس د ستونزو د حل او د اسلامي نظام د پياوړتيا لپاره خدمت ته چمتو دي.د کډوالو او راستنېدونکيو چارو وزير مولوي عبدالکبير د علماوو او قومي مشرانو نظريات او وړانديزونه اورېدلي او ويلي يې دي، حکومت د ولسي اړيکو پياوړتيا ته ځانګړې پاملرنه لري.دغه‌راز نوموړي د علماوو او مشرانو رول مهم بللي او زياته کړې يې ده، چې اسلامي نظام به د ټولو افغانانو د شته ستونزو د حل ... ۳مخ

# د غزې په اړه د ټرمپ د پلان پر ضد نړيوال غبرګونونه زيات شوي

د امريکا د ولسمشر ډونالډ ټرمپ د هغې طرحې پر ضد نړيوال غبرګونونه زيات شوي، چې د غزې د کنټرول لپاره يې وړاندې کړې ده.د اردن پاچاه دويم عبدالله واشنګټن ته د سفر پر مهال ټينګار کړی، چې اردن به د فلسطينيانو د جبري ... ۳مخ

# يوه مياشت کې د هيواد ګمرکي چارو نږدې ۱۶ سلنه پرمختګ کړی

د ماليې وزارت وايي؛ د ګمرکونو او عوايدو د مرستيال مفتي عبدالمتين سعيد په مشرۍ د روان (۱۴۰۳هـ.ل) کال د مرغومي په مياشت کې په ګمرکونو کې د ترسره شويو چارو د تخنيکي ارزونې ناسته پر ليکه او حضوري بڼه شوې.ياد وزارت زياتوي؛ په پيل کې د ګمرکونو او عوايدو مرستيال د ګمرکي عوايدو د زياتوالي، د مسئولينو او کارکوونکو ترمنځ د تجربو په شريکولو، د کارکوونکو د وړتيا لوړولو، د قاچاقي او ممنوعه توکو د مخنيوي، په دقيق ډول د خالي بار وړونکو موټرو د وزن معلومولو او د يو شمېر نورو موضوعاتو په اړه د ولايتي ګمرکونو مسئوليتو ته لازمې سپارښتنې وکړې. ورپسې د ګمرکونو لوی رياست د پلان جوړونې، پاليسۍ، څارنې او ارزونې رياست... ۳مخ

# له هرات څخه د تېرکال په پرتله د پستې صادرات زيات شوي

د هرات د سوداګرۍ او پانګونې خونې مسئولين وايي، بهر ته د پستې په صادراتو کې د تېر کال په پرتله ۲۱ سلنه زياتوالی راغلی دی .د يادې خونې اجرائيوي آمر محمد يوسف امين ويلي، په تېرو نهو مياشتو کې د ۲۴ ميليونه او ۶۷۶ زره ډالرو په ارزښت پسته بهر ته صادره شوې، چې دا د تېر کال په پرتله د پام وړ زياتوالي ښيي.د امين په وينا، د هرات د نهو مياشتو ټول صادرات ۱۱۹ ميليونه او ۳۲ زره ډالرو ته رسېدلي، چې پکې کرنيز محصولات، وچې مېوې، معدني توکي او قيمتي ډبرې شاملې دي. په ورته وخت کې د هرات د کرنې او مالدارۍ خونې رييس بشير احمد بهادري ويلي... ۳مخ

# له فراه څخه د ۹۰۰ زرو ډالرو په ارزښت کرنيز محصولات بهر ته صادر شوي

د فراه د صنعت او سوداګرۍ رياست مسئولين وايي ،چې د روان کال په تېرو لسو مياشتو کې يې بهرنيو هېوادونو ته د ۹۰۰ زرو ډالرو په ارزښت کرنيزمحصولات او نور توکي صادر کړي دي.
د ياد رياست د صادراتو د پراختيا مدير محمد عيسي رحماني باختراطلاعاتي آژانس ته ويلي، چې د روان کال په تېرو لسو مياشتو کې يې د ۹۰۰ زرو ډالرو په ارزښت ... ۳مخ

# د ننګرهار د ترافيکو مديريت څخه باندې ۵۲ ميليونه افغانۍ عوايد راټول کړي

د ننګرهار د ترافيکو مديريت مسئولين وايي، چې په تېرو ۱۰ مياشتو کې يې څه باندې ۵۲ ميليونه افغاني عوايد راټول کړي دي.د ننګرهار د امنيې قوماندانۍ مرستيال مولوي محمد طاهر مبارز باختراطلاعاتي اژانس ته ويلي، چې ياد مديريت د روان کال په تېرو لسو مياشتو کې ۵۲ ميليونه ۱۹۶ زره ۷۶۶ افغانۍ عوايد د ۱۹ زره ۹۶۸ جوازسيرونو... ۳مخ

# هيواد کې له ۵۰ د زياتو سترو پروژو کارونه روان دي

د ټولګټو وزارت مسئولين وايي، اسلامي امارت تېرو درېوو کلونو کې د سالنګ، کابل - کندهار، کندهار ارزګان لويې لارې او ګڼې نورې سترې پروژې پيل کړې دي. د ټولګټو وزارت وياند محمداشرف حق شناس کابل کې د خبري کنفرانس پر مهال وويل، دا مهال ټول هېواد کې له ۵۰ د زياتو بېلابېلو پروژو کارونه دوام لري. نوموړي ويلي، د سالنګ لويې لارې زيانمنې برخې جوړې شوې په خبره يې د ټولګټو وزارت چمتو دي، چې سالنګ کې د هوا برابرېدو سره د پاتي برخو کارونه بيرته پيل کړي.د ټولګټو وزارت مسئولينو همداراز ويلي، دغه وزارت د ولايتونو د نښلولو او د پروژو پلي کولو لپاره يو منظم پلان ترتيب کړي او هغو ولايتونو ته چې مخکې ورته پاملرنه نه ده شوې ځانګړې پام به ورته وشي.

# د بادغيس له زندان څخه ۳۱ بنديان آزاد شول

د عاليقدر اميرالمؤمنين (حفظه‌الله ) د ځانګړي فرمان پر اساس د بادغيس له مرکزي زندان څخه ۲۷ بنديان ازاد او د ۱۸ نورو د بند موده کمه شوې ده. له زندان څخه سرچينې باختر اطلاعاتي آژانس ته ويلي، چې دا پرېکړه د عاليقدر اميرالمؤمنين د عفوې او د سترې محکمې د حکم پر اساس عملي شوې ده.په ورته وخت کې ازادو شويو زندانيانو د دې فرمان هرکلي وکړ او يادونه يې وکړه، چې دغه اقدام د دوي د اصلاح او د نوي ژوند د پيل لپاره يو غوره فرصت دي.
هغوي ژمنه وکړه، چې خپلې تېروتنې به اصلاح او سالم ژوند به غوره کړي.د ځايي مسئولينو په وينا، دغه اقدام د خلکو له خوا هم د سولې او اصلاح په برخه کې يو مثبت ګام بلل شوی دی.

# بدخشان کې د يوه کانال د جوړولو چارې پيل شوې

د بدخشان د کرنې، اوبولګولو او مالدارۍ رياست مسئولين وايي، چې په ياد ولايت کې د څه باندې ۶ ميليونو افغانيو په لګښت د ۳۶.۵ کيلومتره کرنيزکانال د جوړېدو چارې پيل شوې دي.
د بدخشان د کرنې، اوبولګولو اومالدارۍ رييس مولوي امان الله حسن وايي، چې د ياد ولايت د مرکز په ګډون په بهارک، تشکان، ارغنجخوا او کشم ولسواليو کې د اوبولګولو په برخه کې د شلټرفارلايف موسسې په مالي ملاتړ د ۶ ميليونو او ۶۰۰ زره افغانيو په لګښت د ۳۶.۵ کيلومترو په اوږدوالي... ۳مخ

# د ګډو جګړه ييزو زده کړو قوماندانۍ څخه ۲۰۲ تنه سرتېري فارغ شول

د ملي دفاع وزارت د خبر له مخې د عبدالله بن مسعود رض د ګډو جګړه ييزو زده کړو قوماندانۍ څخه ۲۰۲ تنه منسوبين فارغ شوي دي.د خبر له مخې دغو منسوبينو ته د D-30 توپ حفظ او مراقبت، M24، SPG-9، M2،، هاوان او سرحدي پياده کورسونو کې څلور مياشتنۍ مسلکي زده کړې ورکړ شوې دي.
مسئولينو دغو فارغينو ته په خبرو کې توپچي ځواکونه د پوځ د ملا تېر بللي په خبره يې، هر اردو چې پياوړې توپچي ځواک لري د جګړې د ډګر ګټونکی به هم وي.دوي ياده برخه کې د عصري ټکنالوژۍ او وسايلو د کارولو پر زده کړه هم ټينګار کړې. په ورته مهال نويو فارغو شويو منسوبينو د هېواد له خپلواکۍ، ځمکنۍ بشپړتيا او اسلامي ارزښتونو څخه د دفاع ډاډ ورکړې.د يادونې وړ ده، چې د عبدالله بن مسعود رض د ګډو جګړه ييزو زده کړوقوماندانۍ کې د هېواد د مسلکي اردو جوړولو لپاره په بېلابېلو برخو کې اسلامي اردو ته جذب شويو سرتېرو ته مسلکي زده کړې ورکول کېږي.

# ننګرهار کې د شفافيت او حساب ورکولو خبري ناستې پيل شوې

د ننګرهار د اطلاعاتو او فرهنګ رياست له لوري د شفافيت او ولس ته د حساب ورکولو تر عنوان لاندې د خبري ناستو لړۍ پيل شوې ده.د ياد رياست د اطلاعاتو آمر مولوي صديق الله قريشي ويلي، د دې ناستو موخه د شفافيت لا رامنځته کېدل او خلکو ته حساب ورکول دي.د نوموړي په وينا، د اطلاعاتو او فرهنګ رياست تر چتر لاندې د دې لړۍ په ترڅ کې به د ننګرهار د ټولو دولتي ادارو مسئولين هره سه شنبه د خپلو ترسره شويو او راتلونکو پلانونو په اړه معلومات ورکوي.د يادونې وړ ده چې له دې وړاندې هم د اطلاعاتو او فرهنګ رياست له لوري ورته خبري ناستې ترسره شوې وې.